

سرمقاله:

# دتلي (۱۵) مه پر خپلواک هیواد

# دلویدیځوالونا ببره تیری

دمصنوعي او نا قابل توجیه شواهدواو دلایلوپر بنسټ دامریکاپه مشرۍ دناتو مؤتلف پوځ دخپلې عصري تکنالوژۍ په زور او تزویر (۱۳۸۰)هـ ل کال دمیزان یا تلې دمیاشتې په (**۱۵**)نیټه دیوه خپلواک او اسلامي هیوادپه توګه دافغانستان سپیڅلې خاوره اشغال اودهوا اوځمکې له لارې یې پر تش لاسي افغان ولس اوسوله خوښې اسلامي امارت وحشیانه بریدونه پیل کړل.

داشیبې افغان مسلمان ولس او مجاهدینوته ډیرې دردونکې اوله ساندو ډکې ځکه وي ،چې پردیو خولا څه چې خپلوافغـان ډولـه مجاهـدنما هغـو څېروچې تـر پرونـه بـه یـې امریکایـان او لویدیځوال کافر اومشرکان بلل ، له بده مرغه چې پدې ورځ یې دیرغلګرو دپلیوعسکروغوندې دناټودخونکارو پوځونوپه پله دمجاهدینوسره په لومړیو لیکو کې جګړه کوله !

افغان ولس چې دا مهال دخپل مجهول راتلونکې په ابهام کې د( **۵۲**B )ډوله دهشت اچونکیو الوتکو دزر کیلویي لیزري بمونو بـارودو او لوخړو دسکران ډولـه بوږنونکې حالت سره مخ کړی و ،تر دې چې دځینوبا احساسه وګړو حواس مختل او دبعضو له کاره لویدلي و و ،او دیوه واحد ذات ﷻ **څخه** پرته یې بله اسره نلرله، خو په شراب و کباب مستو یرغلګرو چې دبې اسرې ولس دکوچنیو ماشـومانو، سـپین ږیـرواو معصوموښـځوله کوکـارو او فریادونوڅخـه خونـد اخسـت اوزمونږپـه مظلومانه‌آهونو دغرب دکلیساووپاپانو او ددوهم صلیبي جنګ د دعوتګر(ډبلیو بش)سینه یخوله.

هغـه وخت دلویـدیځ دپـوځي تکنـالوژۍ طلسـم دډیـرو طـاغوت پلـوو وګـړوسـترګي تـر خپـل یهودي یا نصراني منتر او جادو لاندې تسخیر کړي او تـر ننـه یـې دغولونکیـو شعـارونوپه خیـالي باغونوکې لالهانده وساتل ،چاته دبیا رغاونې ،اوچاته یې دښځو دحقوقواوصنعتي بنسټونوپه احیاء غوړې ژمنې اودرغنده ګامونواخستلو کاذبې وعدې ورکړي ،چې دادی نن ددې غولیدلیو څخه خپل اسلامي اوملي تګلوری ورک دی اولکه ((دابواخستې انسان ځګ ته هم لاس اچوي )) .

خو ښايي دا له هيچا څخه پټه نوي ،چې دغربيانو آره مو خه افغانستان کې ديوه خالص اسلامي نظام سقوط و ،او همدې جنون دوئ له زرګونو کيلو متره ليرې له خپلو شيش محلونو څخه دې ختين او غريز هيواد ته راوستل، که نه ،طالبان او مجاهدين لا ددومره مادي ځواک څښتان شوي نه وو ،چې په ځو زنګ وهلو تورو او شلخي ټوپکونو دې تر واشنګټن ،لندن او پاريس پورې ځانونه په بريښنايي توګه ورسوي ،پداسې حال کې چې دروسانو روزل شوي افراد اوبقاياوو يې لا هم دهيواد دشمال ستراتيژيکي نقطې ننګولې او طالبان له دې تصفيې څخه هم وزګار نه وو !

پرګران هيواد (۴۲ )ګڼ ائتلافيز يرغل داپه ډاګه کړل ،چې کفري حکومتونه دنړۍ په يوه کنج وکنار کې هم داسلامي شريعت په نوم يوه نظام نه زغملای شي اونه يې کار کولوته پرېږدي ،که په هر پلمه وي ،ګردې کفري حلقې به ورته اشرکيږي او هغه به له منځه وړي ،که هرڅو مره دغرب په ماډل ډوله طرحو (انتخاباتو )هم ورغيږي ،خو چې داسلامي مکتب فکر څخه استازيتوب کوي ،لويديځ والوته دمنلو وړ نه دی ،چې دبيلګې په ډول له افغانستانه وروسته يې دعراق ،صوماليا ،مالي او اوس دادی دمصر د ولسي حکومت دپرځولو شاهدان يو .

له نيکه مرغه !

هغه څه چې غربيانو افغانستان کې وليدل، هغه دافغانانو له خپل عنعنوي اسلامي دين سره بې کچه مينه او دبهرنيانو دشتون سره فوق العاده حساسيت او بغض ! چې دا دواړه هغه ننګونې دي چې دوئ يې په (۲۰۱۴ )زکال کې تيښتې او فوري وتنې ته اړيستي اونوربه يې انشاءالله تعالی دتکبيرونو دې هيوادکې ورځې دشمار وي !

دا حقيقت دی :چې افغان ولس يو کرت بيا دوير په تېغر کښيناست او ډيری ځوانی يې دخاورو خوراک شوي، خوداهم دهيرولو نه ده، چې دې مجاهد قام دخپلو اسلافوغوندې دې پيړۍ کې ديوې بلې خونکارې امپراتورۍ دشکست وياړ وګاټه اوددې قرن دمسلمانود قيادت او امامت افتخار يې په برخه شو.

مونږ پداسې حال کې چې دميزان دپنځلسمې بلواګرو په جنايتکارانو لعنت وايو او دوئ او ملګري يې دافغانستان داستقلال ،تشخص او عظمت دښمنان بولو ! خپل مجاهد قام ته ديرغلګرو په وړاندې دسپيځلي جهاد دفتحې او برې مبارکي ورکوو !

وياړو چې د روسي ښکيلاک له انحلال او ماتې څخه پس مو دا پيړۍ مسلمان قام دامريکايانو او مؤتلفينو په وړاندې دفتحې په درشل کې ولاړ او ډيره نږدې به ګرد اشغالګر نهيلې او رسوا له هيواده وشړل شي ! انشاءالله تعالی

# ناتو لحظه هـای مر گ می شمار د

ذبیح الله ''مجاهد ''

جهان در زمان جنگ سرد با دو فتنه قوی نظامی مواجه بود ، هر لحظهء احتمال آن می رفت که ممکن از اثر تصادم این دو پیمان کفری (وارسا و ناتو ) جهان به جنگ دیگر جهانی و ویران کننده مواجه گردد ، طبعا در صورت به وقوع پیوستن جنگ جهانی سوم به همه ملت ها زیان وخسارات سنگینی وارد می شد ، اگر وارسا و ناتو در بین هم تصادم می نمودند این تصادم مثل جنگ های قبلی جهانی نه میبود ؛ بلکی خسارات وویرانی اش به مراتب حتی صد درصد از جنگ های قبلی کرده مهلکتر و به ضد تمام بشریت تمام می شد ، چون هردو پیمان معاصر با اسحلهء های مدهش و ویرانگر اتومی مسلح بودند ، جلو احمتال جنگ سوم جهانی زمان گرفته شد که جهت خطرناک و بسیار مضر هردو پیمان یعنی وارسا به دست افغانهای راد مرد در هم کوبیده شد ، بدون اینکه سردرد و خطری به جهان ایجاد نماید خود فرو ریخت و جهاد مقدس مردم افغانستان آن پیمان را از صفحه ارض برچید ، همچنان جهت دوم این پیمان نیز چون پا از لیاف بدر آورد ، خطری بالفعل به جهان خصوصا به جهان اسلام ایجاد نمود ، این بار پیمان دوم هم دوازده سال است که به دست افغانهای تاریخ ساز و مسلمان به طرف فروریختن گام می بردارد ،در این اواخر منشی عمومی ائتلاف نامیمون ناتو اندرس فوغ راسموسون اعلام داشت: (ماموریت افغانستان ماموریت اخیر پیمان ناتو خواهد بود ) ،

راسموسون این حرف مایوس کننده ءرا هفته قبل دربروکسل پیرامون مباحث دراز وجنجالی درمورد تمویل ناتو از طرف کشورهای عضو ، مایوسی کامل اتحادیه اروپا و تنها ماندن امریکا ابراز نمود ، پیمان ناتو که اکنون پیمان یکتاز نظامی در جهان است ، در حالت نزع قرار دارد ، از یک سو به ضربه خوردن اقتصاد اروپایها و امریکا درجنگ افغانستان کار تمویل ناتو بسیار دشوار گشته و از سوی هم بالا دستی امریکا در فیصله های مربوط به جهان

در سازمان ناتو اعضای کشورهای اروپا را مایوس ساخته وسعی دارند که دیگر پیمان را ترک کنند ، ماموریت افغانستان بخاطر ناتو ماموریت خطرناکتر جهان بود که زیاد از ده سال این پیمان را در جنگ باختنی وبی ثمر مصروف ساخت ،ناتو که در دوازه سال جنگ افغانستان تلفات هنگفت جانی ومالی را تحمل کرد اکنون در حالت مأیوسی و فروپاشی قرار دارد ، با از بین رفتن این پیمان ، جهان باری دیگر به طرف صلح و آرامش گام خواهد زد ،



جهان اسلام که در قرن بیست و بیست ویک در میان کشمکش های ناتو و وارسا تحت شعاع خطرناک به سر می بورد ، گاهی به دست وارسا و گاهی هم به دست ناتو مورد ظلم وستم قرار داشت ، از بین رفتن هردو پیمان را استقبال می نمایند ، امیدواری زیادی دیده میشود که دیگر غارتگران غرب نه خواهد توانستند موجودیت خود را در جهان اسلام حفظ نماید و به چور وغارت سرمایه مسلمانها هنوز هم بپردازند ، درعقب فروریختن ناتو ملت های مسلمان نفس آرام و راحت خواهد کشیدند ، جوانان مبارز مسلمان به آرمان های دیرینه ایشان نایل خواهد آمدند ، مسئله جنجالی فلسطین که به اثر پیمان ناتو و همکاری امریکا و اروپایها بیشتر از شصت سال طول کشید ، شاهد مظالم ووحشتها از طرف اسرائیل بود ، مثل غدود سرطانی کتله مهم جهان اسلام را می رنجانید من بعد به پیروزی فلسطینیها و سرکوب اسرائیل حل خواهد شد ، منابع مسلمانها در جهان از دسترس غارت گران سرمایدار جهانی دور خواهد گشت ، مسلمانان مثلیکه لازم است باهم برادر و هم پیمان خواهد شدند و زمینهء به میان آمدن نظام اسلامی در جهان مساعد خواهد شد . وماذالک علی الله بعزیز

# 2014

# د افغانانو د خوشحالۍ او غلامانو د وېر کال !!

عثماني

څو پېړۍ وړاندې داسې اټکلونه او وړاندوینې شوي وې چې د دوه زره دولسم کال د دسمبر د میاشتې په یوویشتمه نېټه به د ځمکې د کرې پر مخ خلک له قیامت سره مخ شي، د ځمکې حالات به بدل شي او د ځمکې پر مخ به د ژوند کولو ټول امکانات ختم شي، په دې اړه ډېرې خبرنې او پلټنې وشوې، مقالې او کتابونه پرې ولیکل شول، دغې ګنګوسو د نړۍ د ډېرو خلکو پام یې د ځان پر لور اړولی و، د ډېرو باطلو مذهبونو پیروانو په دغه درواغجن قیامت باور درلود. په اروپا، امریکا، روسیه او نورو ډېرو هېوادونو کې خلکو خپلې شتمنۍ راغونډې کړې او خپل جایدادونه یې وپلورل، خپلې د عمر ټولې کړې پیسې یې په لنډه موده کې خرچ کړې او له دغه قیامت څخه د خلاصون او خوندي ځای په لټه او فکر کې شول. د دسمبر یوویشتمه نېټه رانږدې کېده او د خلکو ترهه ډېرېده، خلک له ښارونو څخه په کډه شول او د خوندي ځای په لټه کې شول، د اړتیا وړ خوراکي او د لنډ مهال دژوند نور اړین توکي یې له ځان سره واخیستل او د غرونو رغونو پر لور ولاړل، تر څو که قسمت ورسره یاري وکړي او هلته د قیامت څخه خوندي او ژوندي پاتې شي. دغو ناپوه خلکو هغه ځایونه چې د دوی په اند ګوندې له قیامت څخه به خوندي وي په ډېره لوړه بیه یا وپېرودل او یا یې په کرایه ونیول. بالاخره د قیامت هغه ورځ یا د دوه زره دولسم کال یوویشتمه نېټه هم راورسېده خو هېڅ پېښ نه شو، یو اټکل هم رښتیا نه شو، هغه قیامت تر اوسه رانغی چې د نړۍ د ډېرو بې ایمانه خلکو خوبونه یې تښتولي وو. د دنیا نظام اوس هم هماغسې روان دی، نه دنیا ورانه شوه او نه هم قیامت راغی، د افریقا په دښتو او جونګړو کې اوسېدونکي خلک هم له دغه قیامت څخه خوندي پاتې شول او د اروپا او امریکا په محلونو کې هم، دا یو درواغ وو، یو ډرامه وه، دغسې ډرامې او پروپاګندې له دې وړاندې هم څو څو کرته د نړۍ او سیمې په کچه جوړې شوي او خپرې شوي دي، څو کلونه وړاندې اوازه وه چې له اسمان څخه د ځمکې پر لور یوه لویه ډبره رالوېږي، ډېر خلک یې پریشانه کړي وو، ډبره لا هم نه ده رارسېدلې. همدا راز څه موده وړاندې په افغانستان، پاکستان ایران او ځینې نورو هېوادونو کې د سختې زلزلې د کېدلو اوازې خلک دومره وترهول چې په نیمه شپه، سړه هوا او تېز باران کې له خوبه راپاڅېدل او له خپلو کورونو او ودانیو څخه په تېښته شول. دا ټول هسې بې بنیاده اوازې او ګنګوسې دي چې مختلف خلک یې د خپلو خاصو موخو ته د رسېدو لپاره خپروي او عامو خلکو کې وېره خپروي.

دغه مقدمه مې د دې لپاره کښېښوده چې اوس يو بل دروغجن قيامت راروان دی، دغه قيامت د دوه زره دولسم کال له هغه سره توپير لري، دغه د دروغو قيامت د دوه زره څوارلسم کال د دسمبر په مياشت کې دی، د دوه زره دولسم کال د قيامت و بره نږدې د نيمې نړۍ په خلکو وه خو د دوه زره څوارلسم کال د قيامت ترهه يوازې د افغانستان په بېچاره او زوربدلي ملت کې پاشل شوې ده. د دغه قيامت وړاندوينه څه موده وړاندې هله وشوه کله چې په افغانستان کې د ايمان په زور مجبورې شوې اشغالګرو قواو له افغانستان څخه د تېښتې پرېکړه او اعلان وکړ. امريکايان او برېټې يې لا له وړاندې په دې پوه شوي دي هغه افغانستان چې انګرېز او چنګېز نه دی اشغال کړی، دغه کار زموږ په توان کې هم نه شته ځکه يې اعلان وکړ چې د دوه زره څوارلسم کال تر پای پورې به خپلې ټولې قواوې له افغانستان څخه وباسي. د افغانستان ملت بايد د الله شکر اداء کړي چې د مجاهدينو د قربانيو په پايله کې او د الله تعالی په مرسته په افغانستان کې يو بل سپر پاور هم صفر پاور شو. هغه ورځ چې صليبي ځواکونه له افغانستان څخه ووځي بايد ولمانځل شي، دغه ورځ د کاميابۍ او فتحې ورځ وبولو. د يوويشتمې پېړۍ پيل د امريکا پخواني ولسمشر بوش له خوا د درېيمې صليبي جګړې له اعلان سره وشو. نو موږ خپل ملت ته په زغرده اعلان کړه چې دا درېيمه صليبي جګړه ده. لومړی يې په افغانستان يرغل وکړ او بيا يې عراق ننبه وګرځېده، خو د ټول اسلامي امت د مجاهدينو قربانيو يې مخه ډب کړه چې دا دی له نړۍ څخه نور د امريکا ټغر په ټولېدو دی. دولس کاله کېږي چې امريکايي او ملګرې قواوې يې يوازې په دې بهانه په افغانستان کې د بره دي چې موږ افغانستان ته امن او سوله راولو، ديموکراسي راولو، له افغانانو سره مرسته کوو او داسې نور... خو ديموکراسۍ په رښتيا موږ ته څه راکړل!!!؟ ټول ملت په دې ګواه دی چې په افغانستان کې امن ورځ تر بلې خرابېږي، د ملکي افغانانو د ژوند د ټولو اړخونو کچه هره ورځ مخ پر ټيټېدو ده، دين او ارزښتونه مو هر وخت تر ګواښ لاندې دي، نه خپله خوشحالي لمانځلی شو او نه هم د غم پر مهال راټولېدلی شو، يو ځل نه، بلکې په ځلونه مو ودونه او جنازې د ړندو بمباريو په قصدي توګه هدف ګرځېلي دي، چې هر ځل په کې لسګونه کسان شهيدان شوي دي. غربت او ناانډولي د هرې ورځې په تېرېدو ډېرېږي، تر دې چې د افغانستان په ډېرو سيمو کې مورګانې او پلرونه اړ شوي چې خپلې د زړه ټوټې او د ګېډې بچې وپلوري، تر څو يو څه اندازه مال تر لاسه کړي او همدا راز د دغو بچيو له نفقې څخه خلاص شي، زور يې شايد هغه چا ته مالوم وي، چې په چا راغلي وي. په تېرو څو کلونو کې د هغو افغانانو شمېره چې په قاچاقي او مرګونو لارو اروپا او نورو هېوادونو ته د پيسو پيدا کولو لپاره ځي د بل هر وخت په نسبت زياته او لوړه ده، دا هغه افغانان دي چې د دوی له انده که په هېواد کې همدغه ناوړه نظام وي نو خپل راتلونکی په افغانستان کې تاريک ويني. په هېواد کې دننه ژبني، سمتي، او مذهبي تعصب خو داسې کچې ته رسېدلی چې د افغانستان په تاريخ کې يې سارې نه ليدل کېږي. له ګاونډيو هېوادونو سره خو مو اړيکې دومره ترينګلې شوي دي چې يو بل ته په مورچلو کې ناست يو... دا او دې ته ورته ټول هغه څه دي چې موږ ته غربي ديموکراسۍ تر اوسه راکړي دي. له دومره ډېرو ناخوالو سره بيا هم ډېری افغانان له افغانستان څخه د بهرنيو ځواکونو وتل يو بد شګون بولي.

اخر ولې ! ! !؟لاملونه يې ممکن ډېر وي خو يو عمده لامل يې د افغانانو اقتصادي وضعه ده، ډېر ناپوه افغانان چې په *وَاللَّهُ خَيْرُ الرَّازِقِينَ* يې باور کمزوری دی ،فکر کوي که بهرنيان له افغانستان څخه ووځي او د امريکا بې خرته ډالر پر دوی بند شي ، نو دوی به ګوندې لوږه ووهي، دوی پر دې پوه نه دي چې امريکايان نور په خپله د سوال په ګدۍ ناست دي، امريکايان دې زموږ اقتصاد نه پياوړی کوي ،بلکې مهرباني دې وکړي د چين او جاپان له پورونو دې ځان خلاص کړي، اوس مهال اقتصادي پياوړتيا د امريکا د سياست او تګلارو تر ټولو مهمه برخه ګرځېدلې ده، د امريکا په تېرو ولسمشريزو انتخاباتو کې د کمپاين پر مهال د کانديدانو او عامو امريکايانو لـه خوا تـر ټولو ډېره پاملرنه اقتصادي تګلارو تـه کېده. امريکايانو افغانستان يوازې مذهبي او سياسي ګټو په موخه نه دی اشغال کړی، بلکې تر ډېره يې اقتصادي ګټې په نظر کې نيولې دي. امريکايانو په افغانستان کې په جګړه باندې په تريليونو ډالره سرمايه ګذاري او لګښتونه وکړل ، دوی ليوني نه ول چې زموږ لپاره دغه پيسې ولګوي، بلکې دوی فکر کاوه چې په ډېرې اسانۍ سره به د افغانستان طبعي زېرمې چې تر اوسه خوندي دي ،چور او تالا کړي، او شوي لګښتونه به په لنډه موده کې بېرته تر لاسه کړي، د افغانستان د طبعي زېرمو او شتمنيو څخه به شايد ډېر کم افغانان خبر وي، ځکه خو ځان د امريکا اقتصادي مرستو ته اړ بولي. زموږ يوا ستاد به ويل چې امريکايان دې ته تيار دي، چې د افغانستان د يو ولايت په بدل کې ټوله امريکا در کړي. د افغانستان هره سيمه د طبعي زېرمو او شتمنيو څخه ډکه ده، يو وجه همدا ده چې کله انګرېز، کله چنګېز او کله شوروي او امريکا پر موږ حمله کړې ده او د دغو زېرمو د چور کولو خوبونه يې ليدلي دي.

سعودي عربستان چې زياته برخه يې وچه او بې اوبو دښته ده، کرنيز توليدات يې ډېر کم دي، د اړتيا وړ خوراکي توکو زياته برخه له نورو هېوادونو څخه واردوي، همدا راز صنعتي توليدات يې هم له هيڅ سره برابر دي، ما خو په خپل ژوند کې دا سې شئ نه دی ليدلی چې په هغې دې سعودي جوړ ليکلی وي. څو لسيزې وړاندې سعودي عربستان يو ډېر غريب هېواد و ، خو اوس ځان د پرمختلليو هېوادونو په کتار کې شمېري، اقتصادي وضعه يې دومره ښه ده چې ډېرو پرمختلونکو هېوادونو ته پورونه ورکوي، د عامو خلکو اقتصادي حالت يې د سيمې د هېوادونو په کچه بې ښېلګې دی، هر کور موټر لري، هر فرد ته دولت له خوا مياشتنۍ پيسې ورکول کېږي، د جنوبي اسيا هېوادونو په لکونو خلک سعودي عربستان ته د پيسو پيدا کولو او مزدورۍ لپاره ځي، د دومره اقتصادي پرمختګ لامل څه شی دی ! ! !؟ يوازې يو لامل يې دی او هغه هم د پاک الله رحمت چې په دښتو کې يې ورته تېل او نفت راوويستل، تر څو چې تېل ورسره وي، سعوديان به له هر قسم اقتصادي ستونزو او فشارونو څخه بېغمه وي.

د تازه څېړنو او سروېو له مخې د افغانستان طبعي زېرمې له سعودې هغه څخه په څو برابره ډېرې دي، که د افغانستان دغه طبعي زېرمې په سمه توګه راوويستل شي او نيمايي يې هم په افغانستان او د افغانستان په ملت ولګول شي، بيا نه موږ د امريکا اقتصادي مرستو ته اړتيا لرو او نه د بل کوم

هېواد ، بیا د دې پر ځای چې زموږ ځوانان د پیسو ګټلو او مزدورۍ لپاره خلیج هېوادونو ته مسافري وکړي، له هغه ځایه به دلته خلک د مزدورۍ لپاره راځي. څه موده وړاندې د پنټاګون له خوا یو راپور خپور شو ، چې په کې ویل شوي وو ، افغانستان د لیتیم ډېرې غنې زېرمې لري او کولی شو چې وواېو افغانســتان د لیتــیم ســعودی عربســتان دی، د دغــه راپــور ســره ســم افغانســتان د مســو ، کوبالــت، اوسپنې،باریت، سلفر، سرپو ، سپینو زرو ، جستو ، نیوبیو او نورو قیمتي منرالونو غني زېرمې او د ځمکې د نادرو عناصرو یو اعشاریه څلور ملیون متره مکعب زېرمې لري. په پنټاګون کې د ټاسک فورس مشر جیم بولیون وایي :چې د نړۍ د طبعي زېرمو د نقشې له مخې کېدای شي افغانستان د منرالونو په برخه کې د نړۍ مخکښه یا لیډر هېواد شي. د ځمکې نادرو عناصرو ته په پرمختللې اوسنۍ ټکنالوژۍ کې، لکه موبایلونو ، کمپیوټر ، تلویزون، هایبرډ ماشینونو ، بېټریو ، آپټیک فایبر ، د ټانک په نویګاسیون سېسټم، د توغندیو د لارښود سېسټم، د جنګي جېټ الوتکو په ماشینونو ، د توغندیو دفاعي سېستم، ستلایټ او نورو پرمختللې ټکنالوژۍ کې اړتیا ده. داسې خوشبیني ده چې افغانستان به په دې برخه کې د نړۍ اوږدمهالې اړتیاوې پوره کړای شي. د دغه راپور له مخې د افغانستان د طبعي زېرمو اندازه له یو ترېلیون ډالرو څخه هم زیاته ده، خو د افغانستان اوسنی حکومت وایي چې د افغانستان د طبعي زېرمو ارزښت له درې تریلیونو ډالرو هم ډېر دی چې دغه اندازه کولی شي افغانستان د تل لپاره د پردیو له مرستو او پورونو څخه خلاص کړي.

د لوګر د عینکو د مسو کان د لوګر په شمال ختیځ او د کابل په جنوب کې د دنګو غرونو تر شا پروت دی، چې په سیمه کې د مسو ستر کان پېژندل شوی دی، دغو دنګو غرونو په خپله غېږه کې ستره خزانه ساتلې ده، مس ورځ تر بلې د ورځنۍ ټکنالوژۍ له پر مختګ سره لا نور هم ارزښتمن کیږي. د عینک د مسو کان زېرمه شاوخوا پنځلس ملیونه ټنه اټکل شوې ده، دغه لوی کان په زرګونو کسانو ته د کار زمینه برابرولی شي. دافغانستان د اوسنۍ ادارې د کانونو وزارت له راپور سره سم د عینکو د مسو کان په راویستلو سره به د افغانستان حکومت هر کال څلور سوه ملیونه ډالر ګټه تر لاسه کړي، د نفتو او تېلو په برخه کې هم افغانستان یو غني هېواد دی، د امریکا د ځمکې پېژندنې اداره د افغانستان د نفتو د زېرمو کچه یو اعشاریه اته بلیونه بېرله او یا له دې هم زیاته اټکل کړې ده. په افغانستان کې د نفتو پنځه زونونه پېژندل شوي دي:

۱-د کندز او تخار په سیمه کې د افغان تاجک د نفتو حوزه.

۲-په لویدیځ هرات کې د تېر پل د نفتو حوزه.

۳-په هلمند کې د هلمند د نفتو حوزه.

۴-په پکتیکا کې د کټواز د نفتو جوزه.

۵-په سرپل، جوزجان او فاریاب کې د اموسیند د نفتو حوزه.

د افغان تاجک د تېلو حوزه د افغانستان په شمال کې موقعیت لري، دغه حوزه بیا په شپږو برخو ویشل شوې ده، د دغې حوزې تېل څه د پاسه یو ملیارد بیرله اټکل شوي دی، د همدغې حوزې د یوې برخې په توګه د مزار شریف په سیمه کې تر اتو ملیاردو متر مکعبو ډېرګاز او تر سل ملیونو بیرلو ډېر نفت شته دی، د صندقلي په سیمه کې یې تر شپږ شپېته ملیونو بېرلو ډېر نفت وجود لري. د امو سیند د تېلو حوزه چې د افغانستان په سرپل، جوزجان او فاریاب ولایتون کې موقعیت لري د سویډني ځمکپوهانو له خوا کشف شوې وه، په کال **۱۹۵۷** کې داسې اټکل شوې وه چې په یاده حوزه کې به د اووه اتیا ملیونه بېرلو تېلو څخه هم زیات وي، که په دغه حوزه په شفافه توګه کار وشي ،هر کال به تر ي څلور سوه ملیونه ډالر تر لاسه شي. له دغې حوزې څخه د تېلو راویستلو قراداد یه یوه چینایي شرکت سره شوی دی، داسې ویل کیږي چې تېر کال کې یې ترې یو نیم لک بېرله تېل ویستلي، سږ کال به دغه اندازه درې لکه بېرلو ته ورسیږي او په راتلونکو کلونو کې به څو چنده شي. افغانستان د تېلو تر څنګ د ګازو غني زېرمې هم لري، د افغانستان د کانونو د وزارت د چارواکو په وینا افغانستان د **۵۰۰** بلیونه متر مکعب څخه په زیاته اندازه د مایع ګازو زېرمې لري. د کارپوهانو په وینا که دغه ګاز یوازې د موټرو او نقلیه وسایلو کې د تېلو پر ځای استعمال شي نو د سلو کلونو لپاره د افغانستان اړتیا پوره کوي. په افغانستان کې د ګازو درې لوی سیمې د جوزجان ولایت د ګازو زون، د افغان تاجک زون او د هلمند نفتي زون دي. د افغانستان په جوزجان ولایت کې د ګازو پېژندل شوې سترې زېرمې وجود لري، له دغو سیمو څخه هر کال تر یو ملیارد مکعب زیات ګاز پخواني شوروي ته صادرېدل. همدا اوس افغانستان **۲۵۰** زره مترمکعب ګاز مصرفوي خو له بده مرغه چې ډېره برخه یې له ترکمنستان او ایران څخه وارديږي. له دې ټولو سره په څنګ کې سره زر چې په یوویشتمه پېړۍ کې د اقتصادي پیاوړتیا لپاره اړین توکی بلکې شرط دی ،د افغانستان په مختلفو سیمو کې یې کانونه او زېرمې شته، د سرو زرو بیې دهرې ورځې په تېرېدو سره لوړیږي چې څه موده وړاندې خو یې بیه داسې کچې ته لوړه شوه، چې د انسان په تاریخ کې یې بېلګه نه لیدل کیږي.څو لسیزې وړاندې د پخواني شوروي اتحاد څېړنې ښیي چې د افغانستان د سروزرو د کانونو ارزښت د پنځه ویشت بلیونه ډالرو څخه هم ډېر دی او اوسنۍ څېړنې له دې هم غټ عدد ښیي. د افغانستان د سرو زرو لویي زېرمې د بدخشان، تخار، بامیان، زابل او غزني ولایتونو کې شته دی. اوسپنه چې زموږ په ورځني ژوند کې د ارزښت وړ عنصر دی، په افغانستان کې یې د حاجیګک په نوم د اوسپنې یو لوی کان شته دی، د حاجیګک کان د کابل څخه نږدې سل کېلو متره فاصله کې د بامیانو په ولایت کې پروت دی ،چې د اسیا په سطحه د اوسپنې تر ټولو غټ کان دی، په دغه کان کې د اوسپنې د ډېرو اندازه دوه ملیارده ټنه اټکل شوې ده چې دوه شپېته سلنه یې اوسپنه ده. په دغه کان کې د اوسپنې سره په څنګ کې د ډبرو سکاره هم شته دی چې تر ډېره ورڅخه د سونګ د موادو کار اخیستل کیږي. د حاجیګک له کان څخه د اوسپنې د راویستلو قرارداد له هندي دولتي او شخصي کمپنیو له یوې ډلې سره شوی دی.

په افغانستان کې تر او سه څوارلس سوه داسې ځایونه په ګوته شوي او څېړنې پرې شوي ،چې هلته پربمانه قیمتي کانې او منرالونه شته دی، په دغسې یوه وړه لیکنه کې د افغانستان د ټولو طبعي زېرمو په باره کې مالومات راټولول یو ستونزمن کار دی، او د دغې لیکنې له ظرفیت څخه وتلی دی، د افغانستان د زېرمو په اړه اوس د امریکا او چین په شمول د ډېرو هېوادونو موسسې او شرکتونه لګیا دي څېړنې کوي او هر یو یې غواړي چې دلته پانګونه وکړي، که څوک وغواړي اوس په ډېره اسانه توګه کولی شي د افغانستان د طبعي زېرمو په اړه په ډېر څه ځان پوه کړي.

یو بل شی چې افغانستان ته یې سیاسي او اقتصادي ارزښت ورکړی دی ،هغه د افغانستان جغرافیوي او ستراتېجکي موقعیت دی، افغانستان دی چې جنوبي اسیا له منځنۍ اسیا سره نښلوي، د جنوبي اسیا هېوادونه هم د افغانستان په شان پراخه د تېلو او ګازو طبعي زېرمې لري، ټول هغه تجارتي مالونه په خاصه توګه تېل چې د جنوبي اسیا هیوادونو څخه هندوستان، اروپا او نورې غربي نړۍ ته صادرېږي، د نورو لارو (ایران، روسیه او ازربایجان، چین) په پرتله ورته د افغانستان لار ارزانه او اسانه تمامېږي. د جنوبي اسیا له هېوادونو څخه مالونه د افغانستا ن له لارې د کراچۍ بندر ته او له هغه ځایه بیا د اوبو د لارې اروپا او امریکا ته رسیږي. همدا راز هغه مالونه چې د اروپا څخه د جنوبي اسیا هېوادونو ته رالېږدول کیږي ،نو د افغانستان لار ورته د نورو ټولو لارو په نسبت غوره او اقتصادي ده. د مالونو دغه انتقال کېدای شي ،د ځمکې له لارې وي او یا د هوا له لارې وي. دا په ډاډ سره ویل کېدای شي که یوازې له دغو تجارتي مالونو څخه چې د افغانستان له لارې نورو هېوادونو ته وړل کېږي، په سمه او شفافه توګه مالیه واخیستل شي د افغانستان د دولت کلنۍ بودیجې ته بسیا کوي.

که پایله یې ووایو ، افغانستان یو غني هېواد دی، موږ غریب نه یو ، موږ د شرق او غرب اقتصادي مرستو ته اړتیا نه لرو ، له دې سره په څنګ کې چې موږ پر دې کلک باور لرو چې الله پیدا کړي یو او الله به راته رزق هم راکوي، زموږ طبعي زېرمې موږ ته د یوې نیمې پېړۍ اقتصادي ازادۍ او بسیا ضمانت راکوي، موږ د دغو طبعي زېرمو او شتمنیو په مټ کولی شو ، چې د نړۍ د لومړۍ درجه اقتصادي قوتونو د هېوادونو په لیکه کې ودرېږو ، زموږ د نفوس شپېته سلنه ځوانان دي ،چې کاري وړتیا لري او د لږې خوارۍ څخه وروسته ټول یې په بشري قوه بدلېدای شي، امریکا او اروپا دې خپل مالي بحرانونو ته د حل لار ومومي، د وال سټریټ او نورو مظاهره چیانو ته دې قناعت ورکړي، له پورونو دې ځان خلاص کړي، موږ د اسلامي قانون په موجودیت کې د امریکا دېموکراسۍ ته اړتیا نه لرو ، یوازې اسلام دی چې موږ ته د دنیا او اخرت کامیابي راکولی شي.

د خپلواک افغانستان په هیله

# د جهـــاد د فقهي مسائل

مفتي ابومحمد ''حقاني''

دويمه برخه

د پوروړي (قرضدار) جهاد ته د تگ د جواز او نه جواز مسئله.

دجهاد دعيني فرضيت درې گونې حالتونه.

دجهاد دوجوب شرطونه.

دامیرلخوا دجهاده دیوه چا منع کول.

فقهاء پدې سره خپلو کې یوه خوله دي ،چې کله پور یا قرض حالا یا دمگړۍ غوښتونکی وي ،نو مدیون یا پوروړي به جهاد ته نه ځي ،خو که چیرته پرې پور معجل نه و ،بلکې مؤجل یا یې دغوښتلو نیټه ځنډنی وه ،نودا مسئله مختلف فیها او ډیرې اقوال پکې شتون لري اوهغه داسې چې:

احناف علماء رح وایې چې ددائن یا دپور دخاوند له اجازې نه په غیر چې دپور دتأدیې پیسې نه لري جهادته به نه ځي ،که دائن ورته اجازه هم وکړه، بیا هم مستحب داده، چې لاړ نشي ،که بیا هم لاړ باک نلري ،او که قرض یې معجل نه بلکې مؤجل و ،نو بیا دقرضدار داجازې څخه په غیر هم تلای شي ،موالک رح وایې چې په هغه پورکې چې معجل وي استیذان یا له دائن نه اجازه اخستل جهادته دتگ پر وخت شرط ده، خوچې له مدیون سره دومره څه شئ وي ،چې دایې وپلورې او هغه دده پور پرې خلاص کړي ،که چیرته ورسره دومره شئ نه وي یا یې قرض مؤجل او ځنډنی وي ،او تحلیل یې دده په غیبوبت کې نه راځي ،نو دا شخص بیا ددائن له اجازې پرته هم جهاد ته تللای شي ، شوافع رح وایې:چې که چیرته قرض معجل یا حالا و ،مدیون غریب نه بلکې ددائن دپور دورکړې شونتیا یې درلوده ،نومدیون به جهاد ته ددائن له اجازې نه په غیر نه ځي ،او صحیح قول دادی ،چې دپوروړي داعسار یا غریبۍ په صورت کې دا له جهاده نشي منع کیدای ،دا ځکه چې مطالبه ترې دمگړۍ نشي کیدای، نو جهادته تللای شي ،خو که چیرته یې قرض مؤجل و ،نو اصح قول دادی چې له جهاده یې منع اصلا جواز نلري ،دوهم قول دادی:چې منع کول یې جائز دي، مگر که کفیل بالدین یې دځان پر ځای وریه گوته کړ نو بیا یې منع کول ندې روا ،اودریم قول دادی چې منع یې جواز لري که چیرته یې دپور ورکولو ته کوم مال نه پاتې کیده.... او حنابله رح وایې چې قرض که معجل وي که مؤجل دغریم یا دائن له اجازې پرته مدیون جهادته دقرض تر ادا کیدو مخکې نشي

تللای ،البته که دځانه وروسته يې دومره څه پرينښې وو ،چې دده پور پرې خلاصيده، يا يې کفيل ورته په ګوته کړ اويا يې هم کوم شئ په رهن يا ګروی کې ورکړ، بيا جهادته تلای شي ،دوئ احاديث په دليل کې راوړي دي ، داټول دجواز اونه جواز اختلافات هغه وخت صورت مومي چې جهاد فرض کفايي وي ،که چيرته فرض عين وي نوبياد دائن له اجازې نه په غيرجهاد ته دمديون په تګ کې فقهاء هيڅ قسم اختلاف نکوي او ټول په يوه خوله وايي:چې دې وخت کې اجازې ته اړتيا نشته، جهادته تګ کې له کوم حرج پرته وتل مجاز دي ،البته يوازې حنابله مستحب دا بولي ،چې پدې وخت کې ورته مناسب ده ،چې دمبارزې پر وخت دمړينې له احتمال ځای نه ځان وساتي او دجګړې په لومړۍ ليکه کې ونه دريږي،بلکې دجنګي ليکوپه منځ يا کوم کونج کې ودريږي لکه په حاشيه دعلامه ابن عابدين شامي رح ،حاشية الدسوقی او جواهر الاکليل پدې عبارتونو کې چې راغلي دي :

اتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ عَلَى أَنَّهُ لا يَخْرُجُ الْمَدِينُ لِلْجِهَادِ إِذَا كَانَ الدَّيْنُ حَالا ، وَاخْتَلَفُوا فِيمَا وَرَاءَ ذَلِكَ عَلَى أَقْوَالٍ:

فَذَهَبَ الْحَنَفِيَّةُ إِلَى أَنَّهُ لا يَخْرُجُ الْمَدِينُ بِغَيْرِ إِذْنِ غَرِيمِهِ وَلَوْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَفَاءٌ ؛ لأَنَّهُ يَتَعَلَّقُ بِهِ حَقُّ الْغَرِيمِ وَهُوَ الْمُلازَمَةُ ، فَلَوْ أَذِنَ لَهُ الدَّائِنُ ، وَلَمْ يُبْرِئْهُ ، فَالْمُسْتَحَبُّ الإِقَامَةُ لِقَضَاءِ الدَّيْنِ ؛ لأَنَّ الْبَدْءَ بِالأَوْجَبِ أَوْلَى ، فَإِنْ خَرَجَ فَلا بَأْسَ ، وَكَذَلِكَ حُكْمُ الْكَفِيلِ إِذَا كَانَ بِأَمْرِ الدَّائِنِ ، وَيَسْتَوِي فِي وُجُوبِ الاسْتِئْذَانِ ، الْكَفِيلُ بِالْمَالِ وَالْكَفِيلُ بِالنَّفْسِ.

وَأَمَّا إِذَا كَانَ الدَّيْنُ مُؤَجَّلا فَلَهُ الْخُرُوجُ بِلا إِذْنٍ إِنْ عَلِمَ بِرُجُوعِهِ قَبْلَ حُلُولِهِ ؛ لِعَدَمِ تَوَجُّهِ الْمُطَالَبَةِ بِقَضَاءِ الدَّيْنِ ، لَكِنَّ الأَفْضَلَ الإِقَامَةُ لِقَضَائِهِ (ابن عابدين ٣ / ٢٢١ . )

وَعِنْدَ الْمَالِكِيَّةِ يُشْتَرَطُ الإِذْنُ فِي الدَّيْنِ الْحَالِّ إِذَا كَانَ يَقْدِرُ عَلَى وَفَائِهِ بِبَيْعِ مَا عِنْدَهُ ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ قَادِرًا عَلَى ذَلِكَ ، أَوْ كَانَ مُؤَجَّلاً وَلا يَحِلُّ فِي غَيْبَتِهِ خَرَجَ بِغَيْرِ إِذْنِ الدَّائِنِ ، فَإِنْ حَلَّ فِي غَيْبَتِهِ ، وَعِنْدَهُ مَا يُوَفِّي مِنْهُ ، وَكَّلَ مَنْ يَقْضِيهِ عَنْهُ ((٢)حاشية الدسوقي ٢ / ١٧٥ ، وجواهر الإكليل ١ / ٢٥٢ . )

وَقَالَ الشَّافِعِيَّةُ: إِنَّهُ لا يَخْرُجُ الْمَدِينُ فِي الدَّيْنِ إِذَا كَانَ حَالا إِنْ لَمْ يَكُنْ مُعْسِرًا ، أَيْ كَانَ لَهُ وَفَاءٌ ، وَكَذَلِكَ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَفَاءٌ فِي قَوْلٍ. وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ لَيْسَ لَهُ مَنْعُهُ إِذَا كَانَ مُعْسِرًا إِذْ لا مُطَالَبَةَ فِي الْحَالِ.

وَإِنْ كَانَ الدَّيْنُ مُؤَجَّلا ، فَالأَصَحُّ أَنَّهُ لا يَجُوزُ الْمَنْعُ ، وَالثَّانِي: يَجُوزُ إِلا أَنْ يُقِيمَ كَفِيلا بِالدَّيْنِ. وَالثَّالِثُ: لَهُ الْمَنْعُ إِنْ لَمْ يُخَلِّفْ وَفَاءً ، وَقِيلَ: يَجُوزُ لِلدَّائِنِ أَنْ يَمْنَعَ إِنْ كَانَ الدَّيْنُ يَحِلُّ قَبْلَ رُجُوعِهِ (روضة الطالبين ١٠ / ٢١٠ ـ ٢١١ ، ونهاية المحتاج ٨ / ٥٢ ، ٥٧ . ) .

وَعِنْدَ الْحَنَابِلَةِ لا يَجُوزُ الْخُرُوجُ سَوَاءٌ أَكَانَ الدَّيْنُ حَالا أَمْ مُؤَجَّلا بِغَيْرِ إِذْنِ غَرِيمِهِ إِلا أَنْ يَتْرُكَ وَفَاءً ، أَوْ يُقِيمَ بِهِ كَفِيلا أَوْ يُوَثِّقَهُ بِرَهْنٍ ؛ لِمَا رُوِيَ أَنَّ " رَجُلا جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ: أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَتُكَفَّرُ عَنِّي خَطَايَايَ ؟ قَالَ: نَعَمْ إِنْ قُتِلْتَ وَأَنْتَ صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ ، مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ ، إِلا الدَّيْنَ ، فَإِنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلامُ قَالَ لِي ذَلِكَ "(٢) .

وَلأَنّ < عَبْدَ اللهِ بْنَ حَرَامٍ وَالِدَ جَابِرٍ الصّحَابِيّ المَعْرُوف خَرَجَ إِلى أُحُد وَعَلَيْه دَيْنٌ كَثيرٌ فَاسْتُشْهِدَ ، وَقضَاهُ عَنْهُ ابْنُهُ مَعَ عِلْمِ النّبِيّ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ مِنْ غَيْرِ نَكِيرٍ ، بَلْ مَدَحَهُ ، وَقَالَ: مَا زَالَت المَلائكَةُ تُظِلُّهُ بأَجْنِحَتِهَا حَتّى رَفَعْتُمُوهُ (٣) . وَقالَ لابْنِه جَابِرٍ: أَفلا أُبَشِّرُكَ بِمَا لَقِيَ اللهُ بِهِ أَبَاكَ ؟ مَا كَلّمَ اللهُ أَحَدًا قَطّ ، إِلا مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ، وَأَحْيَا أَبَاكَ وَكَلّمَهُ كِفَاحًا > (۴)

(۲) حديث: "أن رجلا جاء إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم... " أخرجه مسلم ( ۳ / ۱۵۰۱ ـ ط الحلبي ) من حديث أبي قتادة.

(۳) حديث: "ما زالت الملائكة تظله بأجنحتها ... " أخرجه البخاري ( الفتح ۳ / ۱۲۳ ـ ط السلفية ) ومسلم ( ۴ / ۱۹۱۸ ـ ط الحلبي ) من حديث جابر بن عبد الله.

(۴) حديث: "أفلا أبشرك بما لقي الله به أباك ". أخرجه الترمذي ( ۵ / ۲۳۰ ـ ط الحلبي ) وقال: " هذا حديث حسن غريب ".

وَلأَنّ الجِهَادَ تُقْصَدُ مِنْهُ الشّهَادَةُ التي تَفُوتُ بِهَا النّفْسُ ، فَيَفُوتُ الحَقُّ بِفَوَاتِهَا (۱) .

وَأَمّا إِذَا تَعَيّنَ الجِهَادُ فَلا خلافَ بَيْنَ الْفُقَهَاءِ في أَنّهُ لا إِذْنَ لِغَرِيمه ؛ لأَنّهُ تَعَلّقَ بِعَيْنِه ، فَكَانَ مُقَدّمًا عَلى مَا فِي ذِمّته كَسَائِرِ فُرُوضِ الأَعْيَانِ. وَصَرّحَ الحَنَابِلَةُ بِأَنّهُ يُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ لا يَتَعَرّضَ لِمَظَانّ الْقَتْلِ مِنَ المُبَارَزَةِ ، وَالوُقُوف في أَوّلِ المُقَاتِلَة ؛ لأَنّ فيهِ تَغْرِيرًا بِتَفْوِيتِ الحَقّ ، بَلْ يَقِفُ وَسَطَ الصّفّ أَوْ حَاشِيَتِه حِفْظًا للدّيْنِ ((۲) ابن عابدين ۳ / ۲۲۱ ، وحاشية الدسوقي ۲ / ۱۷۵ ، وجواهر الإكليل ۱ / ۲۵۲ ، ونهاية المحتاج ۸ / ۵۷ ، وروضة الطالبين ۱۰ / ۲۱۴ ، والمغني ۸ / ۳۶۰ ، وكشاف القناع ۳ / ۴۵ )

## دجهاد د فرضیت درې ګونې حالات :

په تولیزه‌ول یا فی الجمله دلاندیني منصوصي دلایلو له مخې جهاد فرض دی:

الجِهَادُ فَرْضٌ فِي الجُمْلَةِ ، وَالدّلِيلُ عَلَى فَرْضِيّته قَوْلُهُ عَزّ وَجَلّ: { كُتِبَ عَلَيْكُمُ القِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَكُمْ } (سورة البقرة / ۲۱۶ ) ژباړه :پر تاسو جهاد فرض کړای شوی دی او دا به تاسو ته بد معلومیږي /وقَوْله تَعَالى: { انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ } (سورة التوبة / ۴۱. )

ژباړه: جهاد ته لاړشئ سپک اودرانده /پلي او سپاره .....، او جهاد وکړئ په خپلو مالونو او ځانونو سره دالله ﷻ په لاره کې / وَقَوْلُهُ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ: "الجِهَادُ مَاضٍ مُنْذُ بَعَثَنِي اللهُ إِلى أَنْ يُقَاتِلَ آخِرُ أُمّتِي الدّجّالَ " ( " أخرجه أبو داود ( ۳ / ۴۰ ـ تحقيق عزت عبيد دعاس ) من حديث أنس بن مالک ، وفي إسناده جهالة كما في فيض القدير للمناوي ( ۳ / ۲۹۳ ـ ط المكتبة التجاري )

ژباړه: جهادبه روان وي دهغه وخت څخه چې زه الله ﷻ پیغمبر لیږلی یم ،ترهغې پورې چې زما وروستی امتي به له دجال سره جګړه وکړي.

وَالمُرَادُ - وَاللهُ أعْلَمُ - أنّهُ فَرْضٌ بَاقٍ ؛ لأنّ المُضِيّ مَعْنَاهُ النّفَاذُ ، وَالنّفَاذُ إنّمَا هُوَ فِي الفَرْضِ مِنَ الأحْكَامِ ، فَإنّ النّدْبَ وَالإبَاحَةَ لا يَجِبُ فِيهِمَا الامْتِثَالُ وَالنّفَاذُ (فتح القدير ٥ / ١٨٩ وما بعدها ، وجواهر الإكليل ١ / ٢٥١ ، وروضة الطالبين ١٠ / ٢٠٨ ، والإنصاف ٤ / ١١٢ ، والمغني ٨ / ٣٤٥ )

ژباړه: دلته د(مضي) لفظ راغلی دی ،ددې معنی نفاذ دی ،او نفاذ په فرضي احکامو کې وي ،ځکه په ندب او اباحت کې امتثال اونفاذ نه وي.

وَقَدْ نُقِلَ عَنِ ابْنِ عَبْدِ البَرّ أنّ الجِهَادَ فَرْضُ كِفَايَةٍ مَعَ الخَوْفِ ، وَنَافِلَةٌ مَعَ الأمْنِ (الدسوقي ٢ / ١٧٣ ، وجواهر الإكليل ١ / ٢٥١ . ).

ژباړه: دحافظ ابن عبدالبر رح نه نقل شوي ،چې دخوف او ویرې سره جهاد فرض کفایي دی او چې کله امن وي نو بیا نفل دی )خو په فرضیت مذکور نصوص ښه حجت کیدلای شي..

## دجهاد په باب دجمهورو علماوو نظر :

هغه علماء چې جهادته په عامو حالاتو کې فرض وایي ،ددوئ تر منځ بیا دا موضوع اختلافي ده ،خو جمهور علماء وایي چې جهاد فرض کفایي دی ،کله چې یې ځیني وکړي.له نورو څخه ساقطیږي لکه د(حاشیه علامه ابن عابدین رح ،کشاف القناع او المغني )په لاندینو عبارتونو کې چې دا سې راغلي دي:

ثُمّ اخْتَلَفَ القَائِلُونَ بِالفَرْضِيّةِ :

فَذَهَبَ الجُمْهُورُ إلى أنّهُ فَرْضٌ عَلَى الكِفَايَةِ إذَا قَامَ بِهِ البَعْضُ سَقَطَ عَنِ البَاقِينَ لِحُصُولِ المَقْصُودِ وَهُوَ كَسْرُ شَوْكَةِ المُشْرِكِينَ ، وَإعْزَازُ الدّينِ. وَمَعْنَى الكِفَايَةِ فِي الجِهَادِ أنْ يَنْهَضَ إلَيْهِ قَوْمٌ يَكْفُونَ فِي جِهَادِهِمْ ، إمّا أنْ يَكُونُوا جُنْدًا لَهُمْ دَوَاوِينُ مِنْ أجْلِ ذَلِكَ ، أوْ يَكُونُوا أعَدّوا أنْفُسَهُمْ لَهُ تَطَوّعًا بِحَيْثُ إذَا قَصَدَهُمُ العَدُوّ حَصَلَتِ المَنَعَةُ بِهِمْ ، وَيَكُونُ فِي الثّغُورِ مَنْ يَدْفَعُ العَدُوّ عَنْهَا ، وَيَبْعَثُ فِي كُلّ سَنَةٍ جَيْشًا يُغِيرُونَ عَلَى العَدُوّ فِي بِلادِهِمْ . وَفَرْضُ الكِفَايَةِ: مَا قُصِدَ حُصُولُهُ مِنْ غَيْرِ شَخْصٍ مُعَيّنٍ ، فَإنْ لَمْ يُوجَدْ إلا وَاحِدٌ تَعَيّنَ عَلَيْهِ ، كَرَدّ السّلامِ ، وَالصّلاةِ عَلَى الجِنَازَةِ (ابن عابدين ٣ / ٢١٩ ، وكشاف القناع ٣ / ٣٢ ، ٣٣ ، والمغني ٨ / ٣٤٢ . ) . فَإذَا لَمْ يَقُمْ بِالوَاجِبِ مَنْ يَكْفِي ، أثِمَ النّاسُ كُلّهُمْ. وَاسْتَدَلّوا بِقَوْلِهِ تَعَالَى: { وَمَا كَانَ المُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافّةً فَلَوْلا نَفَرَ مِنْ كُلّ فِرْقَةٍ مِنْهُمْ طَائِفَةٌ لِيَتَفَقّهُوا فِي الدّينِ وَلِيُنْذِرُوا قَوْمَهُمْ إذَا رَجَعُوا إلَيْهِمْ (سورة التوبة / ١٢٢) . وَاسْتَدَلّوا كَذَلِكَ بِقَوْلِهِ تَعَالَى: { فَضّلَ اللهُ المُجَاهِدِينَ بِأمْوَالِهِمْ وَأنْفُسِهِمْ عَلَى القَاعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلا وَعَدَ اللهُ الحُسْنَى وَفَضّلَ اللهُ المُجَاهِدِينَ عَلَى القَاعِدِينَ أجْرًا عَظِيمًا } (سورة النساء / ٩٥ . )

وَاسْتَدَلُّوا لِذَلِكَ بِأَنّ الجِهَادَ مَا فُرِضَ لِعَيْنِهِ ، وَإِنَّمَا فُرِضَ لإِعْزَازِ دِينِ اللهِ ، وَدَفْعِ الشّرِّ عَنِ العِبَادِ .

وَالمَقْصُودُ أَنْ يَأْمَنَ المُسْلِمُونَ ، وَيَتَمَكّنُوا مِنَ القِيَامِ بِمَصَالِحِ دِينِهِمْ وَدُنْيَاهُمْ. فَإِذَا اشْتَغَلَ الكُلُّ بِالجِهَادِ لَمْ يَتَفَرّغُوا لِلقِيَامِ بِمَصَالِحِ دُنْيَاهُمْ .

وَقَدْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ تَارَةً يَخْرُجُ ، وَتَارَةً يَبْعَثُ غَيْرَهُ ، حَتّى قَالَ: "وَالّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ ، لَوْلا أَنّ رِجَالا مِنَ المُؤْمِنِينَ لا تَطِيبُ أَنْفُسُهُمْ أَنْ يَتَخَلّفُوا عَنّي ، وَلا أَجِدُ مَا أَحْمِلُهُمْ عَلَيْهِمْ ، مَا تَخَلّفْتُ عَنْ سَرِيّةٍ تَغْدُو فِي سَبِيلِ اللهِ "(١).

فَهَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنّ القَاعِدِينَ غَيْرُ آثِمِينَ مَعَ جِهَادِ غَيْرِهِمْ ، فَقَدْ وَعَدَ اللهُ كُلا الحُسْنَى ، وَالعَاصِي لا يُوعَدُ بِهَا ، وَلا تَفَاضُلَ بَيْنَ مَأْجُورٍ وَمَأْزُورٍ (٢ . ( وَرَوَى أَبُو سَعِيدٍ الخُدْرِيُّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ <أَنّ رَسُولَ اللهِ صَلَى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ بَعَثَ إِلَى بَنِي لِحْيَانَ ، وَقَالَ: لِيَخْرُجْ مِنْ كُلِّ رَجُلَيْنِ رَجُلٌ ، ثُمّ قَالَ

(١)حديث: "والذي نفسي بيده ، لولا أن رجالا من المؤمنين... "أخرجه البخاري (الفتح ٢ / ١٢ـ ط السلفية ) من حديث أبي هريرة. وانظر: المبسوط ١٠ / ٣ ، والدسوقي ٢ / ١٨٢ ، وجواهر الإكليل ١ / ٢٥٠ ، والمهذب ٢ / ٢٢٧ ، ونهاية المحتاج ٨ / ٤٥ ، والمغني ٨ / ٣٤٥ ، وكشاف القناع ٣ / ٣٢ ، ٣٣ .

(٢)المهذب ٢ / ٢٢٢ ، ونهاية المحتاج ٨ / ٤٥ ، والمغني ٨ / ٣٤٥ ، وكشاف القناع ٣ / ٣٢

لِلقَاعِدِينَ: أَيُّكُمْ خَلَفَ الخَارِجَ فِي أَهْلِهِ وَمَالِهِ بِخَيْرٍ كَانَ لَهُ مِثْلُ نِصْفِ أَجْرِ الخَارِجِ >(١ . (

وَقَالَ سَعِيدُ بْنُ المُسَيّبِ: إِنّ الجِهَادَ مِنْ فُرُوضِ الأَعْيَانِ(٢) .: {انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ} (٣ . (

وَقَوْلُهُ: {إِلا تَنْفِرُوا يُعَذّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا} (٤) . وَقَوْلُ الرّسُولِ صَلَى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ: <مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ ، وَلَمْ يُحَدّثْ نَفْسَهُ بِالغَزْوِ ، مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ >(٥) . وَأَنّ القَاعِدِينَ المَوْعُودِينَ بِالحُسْنَى كَانُوا حُرّاسًا ، أَيْ كَانُوا مِنْ هَذَيْنِ كَذَلِكَ (٢ . (

(١)حديث: "ليخرج من كل رجلين رجل... "صحيح مسلم ٢ / ١٠٠ ، وفي رواية "لينبعث من كل رجلين أحدهما والأجر بينهما . " (٢)نهاية المحتاج ٨ / ٤٥ وما بعدها ، والمغني ٨ / ٣٤٥ وما بعدها ، وكشاف القناع ٢ / ٣٢ وما بعدها (٣)سورة التوبة / ٤١ . (٤)سورة التوبة / ٣٩ .

(٥)حديث: "من مات ولم يغز ولم يحدث نفسه بالغزو... "أخرجه مسلم (٣ / ١٥١٧ـ ط الحلبي ) من حديث أبي هريرة . (٢)نهاية المحتاج ٨ / ٤٥ وما بعدها .

خلص مفهوم او لنډه ترجمه يې :هغه علماءچې دجهاد دفرضيت نظريه لري، جمهورعلماء پکې وايې چې داجهاد فرض کفايي دی ،چې په بعضو سره دنوروغاړه خلاصيږي ،اوهغه دمشرکينود برم لـه منځه وړل او ددين اعـزاز دی ،اوپـه جهـادکې دفرض کفـايي مفهوم دادی چې :يو شمير خلک يې پـه

جهاد بسنه کولای شي ،یا خو دوئ پوځیان وي، چې دفاترا و اداري لري ،یا خو داسې څوک وي، چې پخپله یې دثواب په خاطر پوځي زده کړه دهمداسې ورځولپاره ترلاسه کړې وي ،چې د دښمن دبرید پر وخت یې غاښ ماتونکی ځواب ویلی شي ،او په سرحداتو کې هم داسې څوک وي ،چې د دښمن څخه یې ساتلای شي ،او هرکال کې دوئ لښکر کشي کوي او د دښمن سیموته لښکر ورلیږي او پر دوئ برید ونه کوي ،فرض کفایي هغه ته وایې چې:له کوم نا معین یانا معلوم شخص څخه یې ترسره کول مقصود وي ،که چیرته بل څوک نه و ، بیا پرې فرض عین ګرځي ،لکه د سلام ځواب ورکول ،او دجنازي لمونځ ،که چیرته دا فرض کفایي هغه څوک ونکړي ،چې فرض پرې ادا کیدای شي ،نو دې صورت کې ټول خلک پرې ګناه ګار دي ،دوئ ددې لپاره چې جوته کړي ،چې جهاد فرض کفایي دی ، پدې آیت کریمه سره یې استدلال کړی چې ژباړه : او نه دي مؤمنان داسې چې ووځي ټول له ځرمي ((سیلمي ))(غزا یا دعلم طلب ته په هروخت کې )نو ولې نه ځي له هرې ډلې له دې مؤمنانو څخه یو ټولی (اونور دې پاتې شي په کورکې )ددې لپاره چې پوهه پیدا کړي دغه (تلونکي )په دین کې اولپاره ددې چې خبر ورسوي ،خپل قوم ته کله چې بیرته راشي ،دوئ دهغو ئ په لورې ددې لپاره چې هغوئ وویریږي (له الله ﷻ او ځانونه وژغوري )له ګناهونو څخه.)...........................اودوئ استدلال پدې نصوصو داسې کړی چې: جهاد فرض عین ندی ،بلکې دا ددین داعزاز او له بندګانو څخه دشر ددفع لپاره فرض شوی دی ،له جهاده اصل مقصود دادی چې، مسلمانان په امن کې شي او دوئ ددین او دنیا مصالح تر سره کړي ،نوکله چې دوئ ټول دجهاد په مصالحو اخته شي، ددنیا چاري به ترې پاتې شي ،او پخپله رسول الله ﷺ همداسې و ،چې کله به جهادته ته ،کله کله به یې بل څوک لیږه ،دا پدې دلالت کوي، چې ځینې جهاد کوي او ځینې نور کور کې ناست وي ،نو دوئ ګناهګار ندي ،دواړو سره الله ﷻ دحسنی وعده کړې او له عاصي سره خو دنیکې جزا وعده نوي. چې مذکور نصوص همدا تفسیر او ترجمه له ځانه سره لري ،سعید بن مسیب رح وایې چې جهاد فرض عین دی ،خو دجمهورو قول مو مخکې پدې هکله ذکر کړ.

## دجهاد دعیني فرضیت درې ګونې حالات !

دجمهورو علماوو له نظره په لاندې دریو حالاتو کې جهاد فرض عین ګرځي. الف:دجګړې په حال کې چې دجګړې لیکې منظمې وي. ب:کله چې دښمن په خلکو ناڅاپه حمله وکړي ج:کله چې پادشاه یا خلیفه دنفیرعام اعلان وکړي لکه پدې عبارتونو کې:

مَتَى يَصِيرُ الْجِهَادُ فَرْضَ عَيْنٍ ؟

– ٩ذَهَبَ جُمْهُورُ الْفُقَهَاءِ إلَى أَنَّهُ يَصِيرُ الْجِهَادُ فَرْضَ عَيْنٍ فِي كُلٍّ مِنَ الْحَالاتِ الآتِيَةِ :

أ - إِذَا الْتَقَى الزَّحْفَانِ ، وَتَقَابَلَ الصَّفَّانِ ، حَرُمَ عَلَى مَنْ حَضَرَ الانْصِرَافُ ، وَتَعَيَّنَ عَلَيْهِ الْمُقَامُ ، لِقَوْلِهِ تَعَالَى : { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا } ... إِلَى قَوْلِهِ : { وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ } (سورة الأنفال / ٤٥ ، ٤٦ . )

ب - إِذَا هَجَمَ الْعَدُوُّ عَلَى قَوْمٍ بَغْتَةً ، فَيَتَعَيَّنُ عَلَيْهِمُ الدَّفْعُ وَلَوْ كَانَ امْرَأَةً أَوْ صَبِيًّا ، أَوْ هَجَمَ عَلَى مَنْ بِقُرْبِهِمْ ، وَلَيْسَ لَهُمْ قُدْرَةٌ عَلَى دَفْعِهِ ، فَيَتَعَيَّنُ عَلَى مَنْ كَانَ بِمَكَانٍ مُقَارِبٍ لَهُمْ أَنْ يُقَاتِلُوا مَعَهُمْ إِنْ عَجَزَ مَنْ فَجَأَهُمُ الْعَدُوُّ عَنِ الدَّفْعِ عَنْ أَنْفُسِهِمْ ، وَمَحَلُّ التَّعَيُّنِ عَلَى مَنْ بِقُرْبِهِمْ إِنْ لَمْ يَخْشَوْا عَلَى نِسَائِهِمْ وَبُيُوتِهِمْ مِنْ عَدُوٍّ بِتَشَاغُلِهِمْ بِمُعَاوَنَةِ مَنْ فَجَأَهُمُ الْعَدُوُّ ، وَإِلا تَرَكُوا إِعَانَتَهُمْ .

وَعِنْدَ الشَّافِعِيَّةِ يُعْتَبَرُ مَنْ كَانَ دُونَ مَسَافَةِ الْقَصْرِ مِنَ الْبَلْدَةِ كَأَهْلِهَا ، وَمَنْ عَلَى الْمَسَافَةِ يَلْزَمُهُ الْمُوَافَقَةُ بِقَدْرِ الْكِفَايَةِ إِنْ لَمْ يَكْفِ أَهْلُهَا ، وَمَنْ يَلِيهِمْ . وَأَمَّا مَنْ لَمْ يَفْجَأْهُمُ الْعَدُوُّ فَلا يَتَعَيَّنُ عَلَيْهِمْ ، يَسْتَوِي فِي ذَلِكَ الْمُقِلُّ مِنْهُمْ وَالْمُكْثِرُ . وَمَعْنَاهُ : أَنَّ النَّفِيرَ يَعُمُّ جَمِيعَ النَّاسِ مِمَّنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْقِتَالِ حِينَ الْحَاجَةِ لِمَجِيءِ الْعَدُوِّ إِلَيْهِمْ ، وَلا يَجُوزُ لأَحَدٍ التَّخَلُّفُ إِلا مَنْ يَحْتَاجُ إِلَى تَخَلُّفِهِ لِحِفْظِ الْمَكَانِ وَالأَهْلِ وَالْمَالِ ، وَمَنْ يَمْنَعُهُ الأَمِيرُ مِنَ الْخُرُوجِ ، أَوْ مَنْ لا قُدْرَةَ لَهُ عَلَى الْخُرُوجِ أَوِ الْقِتَالِ ((ابن عابدين ٣ / ٢٢١ ، وفتح القدير ٥ / ١٩٠ ، والدسوقي ٢ / ١٧٤ ، وجواهر الإكليل ١ / ٢٥٣ ، وروضة الطالبين ١ / ٢١٥ ، ومغني المحتاج ٤ / ٢١٩ ، والمغني ٨ / ٣٤٦ ، ٣٤٧ ، وكشاف القناع ٣ / ٣٧ )

وَقَدْ ذَمَّ اللَّهُ تَعَالَى الَّذِينَ أَرَادُوا الرُّجُوعَ إِلَى مَنَازِلِهِمْ يَوْمَ الأَحْزَابِ فَقَالَ : { وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ إِنْ يُرِيدُونَ إِلا فِرَارًا } (سورة الأحزاب / ١٣ . وانظر : فتح القدير ٥ / ١٩١ ، والمغني ٨ / ٣٦٤ )

ج - إِذَا اسْتَنْفَرَ الإِمَامُ قَوْمًا لَزِمَهُمُ النَّفِيرُ مَعَهُ إِلا مَنْ لَهُ عُذْرٌ قَاطِعٌ ؛ لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى : { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الأَرْضِ أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الآخِرَةِ إِلا قَلِيلٌ } سورة التوبة / ٣٨ .

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : "لا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ ، وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا " (( ". تقدم تخريجه ( ف / ١ ) . وانظر صحيح البخاري ٤ / ٢٢ ) ) وَذَلِكَ لأَنَّ أَمْرَ الْجِهَادِ مَوْكُولٌ إِلَى الإِمَامِ وَاجْتِهَادِهِ ، وَيَلْزَمُ الرَّعِيَّةَ طَاعَتُهُ فِيمَا يَرَاهُ مِنْ ذَلِكَ (حاشية الدسوقي ٢ / ١٧٥ ، وجواهر الإكليل ١ / ٢٥٢ ، والمغني ٨ / ٣٥٢ ، والمحلى ٧ / ٢٩١ .

وَنَصَّ الْمَالِكِيَّةُ عَلَى أَنَّهُ يَتَعَيَّنُ الْجِهَادُ بِتَعْيِينِ الإِمَامِ وَلَوْ لِصَبِيٍّ مُطِيقٍ لِلْقِتَالِ أَوِ امْرَأَةٍ ، وَتَعْيِينُ الإِمَامِ إِلْجَاؤُهُ إِلَيْهِ وَجَبْرُهُ عَلَيْهِ ، كَمَا يَلْزَمُ بِمَا فِيهِ صَلاحُ حَالِهِ ، لا بِمَعْنَى عِقَابِهِ عَلَى تَرْكِهِ ، فَلا يُقَالُ : إِنَّ تَوَجُّهَ الْوُجُوبِ لِلصَّبِيِّ خَرْقٌ لِلإِجْمَاعِ ((١)حاشية الدسوقي ٢ / ١٧٥ ، وجواهر الإكليل ١ / ٢٥٢ . )

خلص مفهوم او ژباړه: دجمهورو فقهاوو په اتفاق سره په دې دریو حالاتو کې جهاد فرض عین ګرځي
:الف: چې کله د مسلمانانو او کفارو جنګیالي سره مخامخ شي ،نو دې وخت کې تیښته او شا ګرځول حرام او جګړه کې برخه اخستل پرې فرض عین دي ،دالله ﷻ د دې قول له امله چې فرمایي ژباړه: ای هغو خلکو چې ایمان مو راوړی چې کله چې دډلې (دکفارو دډلې )سره مخ شوئ نو محکم او ثابت به او سئ ..............او صبر وکړئ یقینا الله ﷻ له صابرانو سره مل دی. ب: کله چې دښمن په خلکو ناڅاپه حمله وکړي ،نو دې صورت کې پدې خلکو عام ددې څخه چې ښځه وي که ماشوم وي، دځان دفاع فرض عین ده ،او یا پداسې قوم باندې کفار حمله وکړي، چې دهغوئ دخپلې دفاع وسه نه کیږي ،نو چې څوک ورته نږدې او ګاونډي وي، پدوئ دې وخت کې جهاد فرض عین او ددې قوم دفاع چې نا څاپه پرې یرغل شوی فرض ده ،په دې ګاونډیانو هغه وخت جهاد فرض عین ګرځي ،چې په جهاد او ددې قوم په دفاع کې یې پر خپل مصروفیت خپلې ښځې او کورونه له یرغلګرو څخه په امن کې وي ،که دا ډاډ نه و ،نو بیا دې یې معاونت پریږدي ،او دشوافعو رح په نزد دقرب په وجه ددفاع جهادي عینیت پدې شرط اعتبار لري ، چې ددوئ او ددې قوم تر منځ دسفر له اندازې نه کم مزل وي ،که چیرته زیات وي، بیا پرې ددې قوم دفاع فرض عین نه، بلکې کفایي ده ، او که چیرته پدې قوم ناڅاپه حمله نه وه شوي ،نو بیا پرې دقرب مکاني په وجه دفاع فرض عین نده ،کله چې نفیر عام وي ،نو ټول هغه څوک چې دجنګ وړتیا لري ،برخه به پکې اخلي او دادفرضیت حکم ورته تعمیم پیدا کوي ،دمال ، اهل یا مکان دساتنې په عذر یادجهادي امیر یوه چاته دنه اجازې او له خروج نه منع کول یا هم دچا چې دجګړې ځواک نوي یا نشي وتلای ) پردوئ سربیره نور هیڅوک ترې پاتې کیدای نشي او هیچاته ترې تخلف روا ندی.

ج: چې کله خلیفه یا امام دنفیر عام حکم ورکړي او اعلان وکړي، چې ټول خلک به جهاد ته ځي ،نو په ټولو ددې اطاعت لازم دی او دې وخت کې پرې دکوم قاطع عذر نه پرته خروج فرض عین ګرځي ، دلایل پرې نصوص دي او ددې رایه او اختیار امام ته محول او موکول دی ،چې ده څنګه پریکړه وکړه، همدا به یې واجب الاطاعت وي، خو مالیکان رح بیا عیني فرضیت دامام په فیصلې پورې تړي ،چې هغه چاته حکم وکړ ،که ماشوم هم و ،په ده فرض عین ګرځي، خو دجمهور علماوو نظر مخکې تیر شو ،هغه په داسې مسایلو کې کفایت کوي.

## دجهاد دوجوب شرطونه

فقهاوو پدې اتفاق کړی چې: جهاد به هغه وخت په یوه شخص واجب کیږي ،چې دا لاندیني شروط پوره کړي ،که یې پوره نکړي وجوب به پرې نوي ،البته دا شرطونه په هغه جهاد کې مراعت کیږي ،چې کله جهاد فرض کفایي او عمومي صورت حال وي ، کله که فرض عین و ، نو بیا به ځینې ددې شرطونو نه پر ځای نوي پاتې ،لکه ذکورت یا بلوغ......پر ښځه او هغه ماشوم چې دجګړې ځواک لري ،دنفیر عام پر وخت

به وسله اخلي او دفاع به کوي ،خو په عامو حالاتو کې پرې نه فرض کېږي ، (الموسوعة الفقية الكويتية )دجهاد دوجوب شروط پدې عبارت کې نغاړلي ، چې په لاندې تفصيل سره يې تشريح شوي دي :

شُرُوطُ وُجُوبِ الجِهَادِ :

أ - الإِسْلاَمُ:

١٢ - اتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ عَلَى أَنَّ مِنْ شُرُوطِ وُجُوبِ الجِهَادِ : الإِسْلاَمَ ؛ لِأَنَّهُ مِنْ شُرُوطِ وُجُوبِ سَائِرِ الفُرُوعِ ؛ وَلِأَنَّ الكافِرَ غَيْرُ مَأْمُونٍ فِي الجِهَادِ ، وَلاَ يَأْذَنُ لَهُ الإِمَامُ بِالخُرُوجِ مَعَ جَيْشِ المُسْلِمِينَ ؛ لِمَا رَوَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى بَدْرٍ فَتَبِعَهُ رَجُلٌ مِنَ المُشْرِكِينَ فَقَالَ لَهُ: تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ؟ قَال :لاَ ، قَال: فَارْجِعْ فَلَنْ أَسْتَعِينَ بِمُشْرِكٍ )( "أخرجه مسلم (٣ / ١٤٥٠ - ط الحلبي ) من حديث عائشة. )

ژباړه :دفقهاوو په اتفاق سره دجهاد دوجوب لپاره لومړی شرط اسلام دی ،ځکه چې اسلام دنوروفروعاتو لپاره هم شرط دی او کافر په جهاد کې مامون ندی اونه به ورته دجهاد قايد دمسلمانانو له لښکر سره دوتلو اجازه ورکوي ،دليل ورته دحضرت عايشې ﷺ هغه روايت چې فرمايي چې رسول الله ﷺبدر ته ووت ،نو دمشرکانو څخه يو کس ورپسې روان شو ،نو رسول الله ﷺدې سړي ته وويل :چې آيا ته په الله ﷻاو دهغه په رسول ﷺايمان لري ؟دې سړي ورته وويل چې نه !نو رسول الله ﷺورته وويل :چې بيرته وګرځه !زه هيڅکله له مشرک څخه مرسته نه غواړم )او بل داچې دده په شتون کې يې له ضرره ويره وي دا ددې څخه ډير دی چې ګټه دې ورسوي.........

البته داسلامي فقه نوروکتابونو لکه (البحرالرايق ،الجوهرة النيرة،او المبسوط لمحمد الشيباني )ليکلي چې که ضرورت و ،نو خليفه کولای شي ،چې دجهاد لپاره دکافر څخه مرسته وغواړي، لکه دبحر الرايق دې عبارت کې چې:

والذمي إنما يرضخ له إذا قاتل أو دل على الطريق لانه فيه منفعة للمسلمين إلا أنه يزاد على السهم في الدلالة إذا كانت فيه منفعة عظيمة، ولا يبلغ فيه السهم إذا قاتل لانه جهاد والاول ليس من عمله فلا يسوى بينه وبين المسلم في حكم الجهاد ، ودل كلامهم على أنه يجوز الاستعانة بالكافر على القتال إذا دعت الحاجة إلى ذلک كما قدمناه.(البحر الرايق على كنزالدقايق )

دې عبارت کې له کافر څخه داړتيا په صورت کې دمرستې غوښتلو مسئله جايز ښکاري ،لاندې د(جوهرې )عبارت کې له کافر څخه دمرستې غوښتل نا مستحب ښودل شوي ،خو بيا ليکي چې که چيرته همدا کافر دمسلمانانو په ملګرتيا کې جهادته حاضر شو ،نو له غنيمت نه به يې برخه نه ،بلکې رضيخه وي ،لکه دې عبارت کې چې:

وكَذَا الذِّمّيُّ إنّمَا يَرْضَخُ لهُ إذَا قاتَلَ أَوْ دَلّ عَلَى الطّريقِ وَيَنْبَغِي للإمَامِ أنْ لَا يَسْتَعِينَ بأهْلِ الذّمّةِ عَلَى القتَالِ ؛ لأَنّهُ لَا يُؤْمَنُ غَدْرُهُمْ وَخيَانَتُهُمْ بالمُسْلمينَ إلّا أنّهُمْ إذَا حَضَرُوا وَقَاتَلُوا مَعَ المُسْلمينَ بإذْنِ الإمَامِ فَإنّهُ يَرْضَخُ لهُمْ وَلَا يَبْلُغُ لرجَالتِهِمْ سَهْمَ الرّجَالَةِ وَلَا لفُرْسَانِهِمْ سَهْمَ الفُرْسَانِ لنُقْصَانِ مَنْزلَتِهِمْ وَانْحطَاطِ رُتْبَتِهِمْ

(الجوهرة النيرة)

دحضرت عايشې رضی الله تعالی عنها د پورتني روايت له مخې له کافر څخه په جهاد کې مرسته غوښتل ناجايز معلوميږي ،خو ځيني نورو روايتونو کې شته چې په ځينو غزواتو کې رسول الله ﷺ کله له اهل ذمه وو او کله له يهودو څخه مرسته غوښتې ،لکه دصفوان بن اميه څخه دځغرو غوښتل او داسې نور ....امثال شته چې استعانت ترې جو تيږي ،نو تطبيق به يې داسې و شي ،چې دا ړتيا پروخت که امام المسلمين ضرور وبولې مرسته ترې غوښتلای شي ،که ضرورت نه و ،نو مستحب داده چې کمک ترې ونه غواړي.والله تعالی اعلم

). ب - العَقْل:

١٧ - المَجْنُونُ غَيْرُ مُكلف فلاَ يَجبُ عَلَيْهِ الجِهَادُ ، وَلاَ يَتَأَتّى منْهُ.

ژباړه: ب: بل شرط عقل دی ليونی چې مکلف ندی نو دجهاد وجوب هم ترې ساقط دی.

ج - البُلُوغُ:

١٨ - لاَ يَجبُ الجِهَادُ عَلَى الصّبيّ غَيْر البَالغِ ضَعيف البِنْيَة وَهُوَ غَيْرُ مُكلف. فَفي الصّحيحَيْن عَن ابْنِ عُمَرَ قال: عُرِضْتُ عَلى رَسُول الله صَلى اللهُ عَلَيْه وَسَلمَ يَوْمَ أُحُد وأَنَا ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ فلَمْ يُجِزْني في المُقَاتلَة (("أخرجه البخاري (الفتح ٥ / ٢٧٢ - ط السلفية ) ومسلم ( ٣ / ١٤٩٠ - ط الحلبي ) . وانظر: فتح القدير ٥ / ١٩٣ وما بعدها ، وابن عابدين ٣ / ٢٢١ ، ٢٢٢ ، والمدونة ٣ / ٥ وحاشية الدسوقي ٢ / ١٧٥ والمهذب ٢ / ٢٣٠ ، ونهاية المحتاج ٨ / ٥٢ وروضة الطالبين ١٠ / ٢٠٩ ، ٢١٠ ، والمغني ٨ / ٣٤٧ ، وكشاف القناع ٣ / ٢٢. ) .

وَقَدْ رَدّ رَسُول الله صَلى اللهُ عَلَيْه وَسَلمَ يَوْمَ بَدْر أُسَامَةَ بْنَ زَيْد وَالبَرَاءَ بْنَ عَازِب ، وَزَيْدَ بْنَ ثَابت ، وَزَيْدَ بْنَ أَرْقَمَ ، وَعَرَابَةَ بْنَ أَوْس ، فَجَعَلَهُمْ حَرَسًا للذّرَاريّ وَالنّسَاء ("أخرجه البخاري (الفتح ٧ / ٢٩٠ - ط السلفية ) . ) ، ولأَنّ الجِهَادَ عبَادَةٌ تَتَعَلّقُ بالبَدَن فلاَ يَجبُ عَلَى الصّبيّ وَالمَجْنُون ، كالصّوْم وَالصّلاَة وَالحَجّ.

وَلأَنّ مَا يُخَافُ مِنَ الضّرَرِ بحُضُوره أَكْثَرُ ممّا يُرْجَى منَ المَنْفَعَة ، وَهُوَ لاَ يُؤْمَنُ مَكْرُهُ وَغَائلَتُهُ ؛ لخُبْث طَويّته ، وَالحَرْبُ تَقْتَضي المُنَاصَحَة ، وَالكَافرُ ليْسَ مِنْ أَهْلهَا .

ژباړه: ج: بلوغ هم دجهاد دوجوب شرط دی ،پرهغه ماشوم چې بالغ نوي ،جهاد ندی واجب ،په صحيحينو کې له ابن عمر ﷺ څخه روايت شوی ،هغه فرمايي چې زه داحد په ورځ رسول الله ﷺ ته وړاندی کړای شوم او زه دا وخت څوارلس کلن وم، نو ماته يې په جګړه دبرخې اخستو اجازه رانکړه ،او رسول الله ﷺ دبدر په ورځ اسامه بن زيد ،البراء بن عازب ،زيد بن ثابت ،زيد بن ارقم او عرابه بن اوس ، ﷺ ځواب کړل او اجازه يې په بدر کې دجګړې لپاره ورنکړه ،دوئ يې دماشومانو او ښځو څوکيداری ته موظف کړل ،او بل دا چې جهاد لکه دلمانځه ،روژي او حج هسې بدني عبادت دی او داپرماشومانو نشته ،

د -الذُّکُورَةُ:

١٩ -تُشْتَرَطُ الذُّکُورَةُ لِوُجُوبِ الْجِهَادِ ، لِمَا رَوَتْ عَائِشَةُ قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّه ، هَلْ عَلَى النِّسَاءِ جِهَادٌ ؟ فَقَالَ: جِهَادٌ لاَ قِتَالَ فِيهِ: الْحَجُّ وَالْعُمْرَةُ (أخرجه ابن ماجه (٢ / ٩٢٨ - ط الحلبي ) وصححه ابن خزيمة (۴ / ٣٥٩ - ط المکتب الإسلامي ) من حديث عائشة.

وَعَلَى ذَلِکَ فَلاَ يَجِبُ عَلَيْهِنَّ الْجِهَادُ مَا لَمْ يَتَعَيَّنْ فِي الأَحْوَالِ الثَّلاَثَةِ الْمُتَقَدِّمَةِ.

أَمَّا إِخْرَاجُ النِّسَاءِ مَعَ الْمُجَاهِدِينَ فَيُکْرَهُ فِي سَرِيَّةٍ لاَ يُؤْمَنُ عَلَيْهَا ؛ لأَنَّ فِيهِ تَعْرِيضَهُنَّ لِلضَّيَاعِ ، وَيَمْنَعُهُنَّ الإِمَامُ مِنَ الْخُرُوجِ لِلافْتِتَانِ بِهِنَّ ، وَلَسْنَ مِنْ أَهْلِ الْقِتَالِ لاسْتِيلاَءِ الْخَوَرِ وَالْجُبْنِ عَلَيْهِنَّ ؛ وَلأَنَّهُ لاَ يُؤْمَنُ ظَفَرُ الْعَدُوِّ بِهِنَّ ، فَيَسْتَحِلُّونَ مِنْهُنَّ مَا حَرَّمَ اللّهُ تَعَالَى.

وَصَرَّحَ الْحَنَابِلَةُ بِاسْتِثْنَاءِ امْرَأَةِ الأَمِيرِ لِحَاجَتِهِ ، أَوِ امْرَأَةٍ طَاعِنَةٍ فِي السِّنِّ لِمَصْلَحَةٍ فَقَطْ ، فَإِنَّهُ يُؤْذَنُ لِمِثْلِهِمَا ؛ لِمَا رَوَتِ الرُّبَيِّعُ بِنْتُ مُعَوِّذٍ قَالَتْ: کُنَّا نَغْزُو مَعَ رَسُولِ اللّهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَسْقِي الْقَوْمَ وَنَخْدُمُهُمُ الْمَاءَ ، وَنَرُدُّ الْجَرْحَى وَالْقَتْلَى إِلَى الْمَدِينَةِ ( "أخرجه البخاري ( الفتح ٦ / ٨٠ - ط السلفية ). وانظر المغني ٨ / ٣٢٥ ، ٣٢٢ . ).

وَلَکِنْ لاَ بَأْسَ بِإِخْرَاجِ النِّسَاءِ مَعَ الْمُسْلِمِينَ إِذَا کَانُوا عَسْکَرًا عَظِيمًا يُؤْمَنُ عَلَيْهِ ؛ لأَنَّ الْغَالِبَ السَّلاَمَةُ ، وَالْغَالِبُ کَالْمُتَحَقِّقِ. وَلاَ يَجِبُ الْجِهَادُ عَلَى خُنْثَى مُشْکِلٍ ؛ لأَنَّهُ لاَ يُعْلَمُ کَوْنُهُ ذَکَرًا ، فَلاَ يَجِبُ مَعَ الشَّکِّ فِي شَرْطِهِ ( المرجع السابق. )

د -ژباړه :دجهاد دوجوب لپاره بل شرط نارينتوب دی ،يعنې په ښځه جهاد ندی واجب ،لکه له حضرت ام المؤمنين عايشي رضی الله تعالی عنها څخه روايت دی ،چې دې رسول الله ﷺ ته وويل :آيا په ښځو جهاد شته ؟نو رسول الله ﷺ ورته وويل چې جهاد دی پرې ،خو جګړه پکښې نشته ،چې هغه حج او عمره دي )ددې روايت له مخې پرې جهاد ندی واجب ، البته په هغو دريو حالتونو کې چې هلته په نر او ښځې دواړو فرض عين ګرځيده ، دا ترې هم نده مستثنی ،کله چې بيا هغه درې حالتونه راغلل ،هلته پرې فرض عين ګرځي. ددې ځای پورې خو داخبره وه، چې په ښځو جهاد واجب ندی، خو که چيرته

همدا سې دا ښځه له مجاهدينو سره کومه دا سې( سريه ) کې تلله چې ورته خطر متوجه و ،نوبيا مکروه دی ،ځکه دې کې ددې ضياع منځته راځي ،امام يا جهادي مشربه دا ښځې مجاهدينو سره له وتلو څخه منع کوي ،ځکه دفتنې خطر شتون لري او دوئ دخپل طبعي جبن او ويرې له مخې دجګړې او جنګ وړتيا او استعداد نلري ،او پدوئ سره پر دښمن غلبه هم باوري نده، نو دا دښمنان به ځانته ددئ ښځومنو څخه هغه څه حلال کړي چې الله ﷻحرام کړې دي.

او حنابله رح وايي چې دا ميرسره يې خپله ښځه او هغه ښځه چې عمر خوړلې وي ،مجاهدينو سره وتلای شي ،او دوئ ته به اجازه ورکول کيږي دا ځکه چې (الربيع بنت معوذ )روايت کوي:چې مونږه به له رسول الله ﷺسره غزا ته تللو ،مجاهدينو ته به مو سقی کوله او ددوئ ته داوبو خدمت به مو کاوه او ټپيان او شهيدان به مو مدينې ته بيرته راوړل.

ليکن دا باک نلري ،چې ښځې مجاهدينو سره ووځي خو شرط به داوي ،چې دمجاهدينو ځواک ډير وي او ددې ښځو دساتنې اومصئونيت باور موجود وي ،نو بيا باک نلري چې ورسره ووځي ،ځکه غالب ګمان دادی چې دا ښځې به دکفارو لخوا متضررې نشي او غالب دا سې وي لکه متحقق !

همدا سې په خنثی مشکل باندې ددې امله جهاد ندی واجب ،چې دده نرتوب جوت ندی او دشک په صورت کې وجوب نه راځي

هـ- الْقُدْرَةُ عَلَى مُؤْنَةِ الْجِهَادِ :

٢٠ - يُشْتَرَطُ لِوُجُوبِ الْجِهَادِ الْقُدْرَةُ عَلَى تَحْصِيل السِّلاَحِ.

وَكَذَلِكَ لاَ يَجِبُ عَلَى الْفَقِيرِ الَّذِي لاَ يَجِدُ مَا يُنْفِقُ فِي طَرِيقِهِ فَاضِلاً عَنْ نَفَقَةِ عِيَالِهِ ، لِقَوْلِهِ عَزَّ وَجَل : { وَلاَ عَلَى الَّذِينَ لاَ يَجِدُونَ مَا يُنْفِقُونَ حَرَجٌ (سورة التوبة/ ٩١ . )

فَإِنْ كَانَ الْقِتَال عَلَى بَابِ الْبَلَدِ أَوْ حَوَالَيْهِ وَجَبَ عَلَيْهِ ؛ لأِنَّهُ لاَ يَحْتَاجُ إِلَى نَفَقَةِ الطَّرِيقِ ، وَإِنْ كَانَ عَلَى مَسَافَةٍ تُقْصَرُ فِيهَا الصَّلاَةُ وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى وَسِيلَةٍ تَنْقُلُهُ لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ ؛ لِقَوْلِهِ تَعَالَى : { وَلاَ عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لاَ أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوْا وَأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلاَّ يَجِدُوا مَا يُنْفِقُونَ(٢) }.

وَإِنْ بَذَل لَهُ الإْمَامُ مَا يَحْتَاجُ إِلَيْهِ مِنْ وَسِيلَةِ نَقْلٍ وَجَبَ عَلَيْهِ أَنْ يَقْبَل وَيُجَاهِدَ ؛ لأِنَّ مَا يُعْطِيهِ الإْمَامُ حَقٌّ لَهُ ، وَإِنْ بَذَل لَهُ غَيْرُ الإْمَامِ لَمْ يَلْزَمْهُ قَبُولُهُ (ابن عابدين ٣ / ٢٢٠ ، ٢٢١ وحاشية الدسوقي ٢ / ١٧٥ ، وروضة الطالبين ١٠ / ٢١٠ والمغني ٨ / ٣٤٨ ) . (١) (٢) سورة التوبة / ٩٢ . (٣).

. هـ-ژباړه:دجهاددوجوب بل شرط دادی چې دوسلې ځواک ولري او قدرت په مؤنت دجهادضروردی چې ددې نه پرته نه واجبيږي ،همدا رانګه په هغه فقير واجب نشو ،چې هغه دومره وس ونلري، چې دا هل وعيال له نفقې نه يې زيات وي او دا يې لاره کې مصرف کړي ،نظر ددې قول له الله

تعالی نه چې فرمايې ژباړه :اونه په هغه خلکو څه حرج شته چې دومره څه نه مومي چې نفقه يې کړي )البته که جګړه دښار په څنډو او يا دروازه کې وه ،نو بيا خو دنفقې اړتيا نشته ،نو ځکه پرې جهاد واجب دی او که چيرته دومره فاصله کې و ،چې لمونځ په قصر سره ادا کيده ،نو بيا پرې نه واجبيږي ..............که بيا امام يا جهادي مشر ورته دجهاد وسايل برابر کړل، نو پرده يې اخستل واجب دي او جهادته به ځي، البته که بل ځوک و ، نو بيا پرې ددې اخستل واجب ندې

و - السّلاَمَةُ مِنَ الضّرَرِ :

٢١ - لاَ يَجِبُ الْجِهَادُ عَلَى الْعَاجِزِ غَيْرِ الْمُسْتَطِيعِ ؛ لأَنّ الْعَجْزَ يَنْفِي الْوُجُوبَ ، وَالْمُسْتَطِيعُ هُوَ الصّحِيحُ فِي بَدَنِه مِنَ الْمَرَضِ. وَمِنْ ثَمّ فَلاَ يَخْرُجُ الْمَرِيضُ الدّنَفُ الّذِي يَمْنَعُهُ مَرَضُهُ مِنَ الرّكُوبِ أَوِ الْقِتَالِ ، بِأَنْ تَحْصُلَ لَهُ مَشَقّةٌ لاَ تُحْتَمَل عَادَةً.

وَلاَ يَسْقُطُ وُجُوبُ الْجِهَادِ بِالْمَرَضِ إِنْ كَانَ يَسِيرًا لاَ يَمْنَعُهُ ، كَوَجَعِ ضِرْسٍ ، وَصُدَاعٍ خَفِيفٍ ، وَنَحْوِهِمَا ؛ لأَنّهُ لاَ يَتَعَذّرُ مَعَهُمَا الْجِهَادُ (حاشية رد المحتار ٣ / ٢٢١ ونهاية المحتاج ٨ / **٥٥** ، والمغني ٨ / ٣٤٨ وكشاف القناع **٣** / ٣٢ . ) .

وَإِنْ قَدَرَ عَلَى الْخُرُوجِ دُونَ الْقِتَالِ فَيَنْبَغِي أَنْ يَخْرُجَ لِتَكْثِيرِ السّوَادِ إِرْهَابًا (رد المحتار ٣ / ٢٢١ ، وفتح القدير **٥** / ١٩٣ . ) .

وَكَالْمَرِيضِ مَنْ لَهُ مَرِيضٌ لاَ مُتَعَهّدَ لَهُ غَيْرُهُ (نهاية المحتاج ٨ / **٥٥** . ) .

وَلاَ يَخْرُجُ الأَعْمَى ، وَلاَ الأَعْرَجُ ، وَلاَ الْمُقْعَدُ ، وَلاَ الأَقْطَعُ ، لأَنّ هَذِهِ الأَعْذَارَ تَمْنَعُهُمْ مِنَ الْجِهَادِ ، وَقَدْ قَالَ اللّهُ تَعَالَى : { لَيْسَ عَلَى الأَعْمَى حَرَجٌ وَلاَ عَلَى الأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلاَ عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ (سورة الفتح / ١٧ . ) } .

وَقَال : { لَيْسَ عَلَى الضّعَفَاءِ وَلاَ عَلَى الْمَرْضَى وَلاَ عَلَى الّذِينَ لاَ يَجِدُونَ مَا يُنْفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلّهِ وَرَسُولِهِ (سورة التوبة / ٩٢ . ) } .

فَأَمّا الأَعْمَى فَمَعْرُوفٌ أَنّهُ لاَ يَصْلُحُ لِلقِتَالِ فَلَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ ، وَكَالأَعْمَى ذُو رَمَد ، وَضَعِيفُ بَصَرٍ لاَ يُمْكِنُهُ اتّقَاءُ السّلاَحِ ، فَإِنْ كَانَ يُدْرِكُ الشّخْصَ وَمَا يَتّقِيهِ مِنَ السّلاَحِ وَجَبَ عَلَيْهِ ؛ لأَنّهُ يَقْدِرُ عَلَى الْقِتَالِ ، وَإِنْ لَمْ يُدْرِكْ ذَلِكَ لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ ؛ لأَنّهُ لاَ يَقْدِرُ عَلَى الْقِتَالِ.

وَيَجِبُ عَلَى الأَعْوَرِ وَالأَعْشَى ، وَهُوَ الّذِي يُبْصِرُ فِي النّهَارِ دُونَ اللّيْل ؛ لأَنّهُ كَالْبَصِيرِ فِي الْقِتَالِ ((١) نهاية المحتاج ٨ / **٥٥** ط مصطفى البابي الحلبي ، والمهذب ٢ / ٢٢٨ ، وكشاف القناع ٣ / ٣٢ . ) .

وَأَمَّا الْعَرَجُ فَالْمَقْصُودُ بِهِ الْعَرَجُ الْفَاحِشُ الَّذِي يَمْنَعُ الْمَشْيَ الْجَيِّدَ وَالرُّكُوبَ كَالزَّمَانَةِ وَنَحْوِهَا ، وَهُوَ عَرَجٌ بَيِّنٌ ، وَلَوْ كَانَ فِي رِجْلٍ وَاحِدَةٍ ، فَإِذَا كَانَ يَسِيرًا يَتَمَكَّنُ مَعَهُ مِنَ الرُّكُوبِ وَالْمَشْيِ ، وَإِنْ تَعَذَّرَ عَلَيْهِ شِدَّةُ الْعَدْوِ ، فَلاَ يَمْنَعُ ذَلِكَ وُجُوبَ الْجِهَادِ ، لأَنَّهُ مُمْكِنٌ فَشَابَهَ الأَعْوَرَ.

وَمِثْلُ الأَعْرَجِ الأَقْطَعُ وَالأَشَلُّ وَلَوْ لِمُعْظَمِ أَصَابِعِ يَدٍ وَاحِدَةٍ ، إِذْ لاَ بَطْشَ لَهُمَا وَلاَ نِكَايَةَ ، وَمِثْلُهُمَا فَاقِدُ الأَنَامِلِ.

وَلاَ تَأْثِيرَ لِقَطْعِ أَصَابِعِ الرِّجْلَيْنِ إِذَا أَمْكَنَ مَعَهُ الْمَشْيُ مِنْ غَيْرِ عَرَجٍ بَيِّنٍ ((۲) نهاية المحتاج ۸ / **۵۵** ، والمهذب ۲ / ۲۲۸ . ).

و: ژباړه له جسماني امراضو څخه سلامتیا دجهاد لپاره بل شرط دی ، نو په هغه چا جهاد نه واجبیږي ،چې دده توانایي نوي ،ځکه عجز دوجوب سره منافات لري ،او استطاعت هغه دی ،چې جسما روغ رمټ وي ،نو ویلای شو چې هغه مریض به جهادته نه ځي ،چې همیشنی ناروغي ولري، چې له امله یې له سپرلۍ او جګړې څخه منع کوي ،یعنې معمولا ده ته، پکې مشقت او تکلیف وي ،او د سر او دغابنونو غوندې عادي او معمولي دردونه دجهادلپاره مانع نه ګرځي ،داځکه چې داپه اعذارو کې نه حسابیږي ،ردالمحتار او فتح القدیر لیکلي چې :که چیرته جهادته تللای شو ،مګر دجنګ طاقت یې نه درلود ، نو پر کفارو درعب اچولولپاره به هم دمجاهدینو دصف او لیکو غټولولو یا تکثیر لپاره به له جهادي کاروان سره ځي ،اودمریض په حکم کې هغه ثوک هم راځي، چې کورکې مریض ولري ،خو دخدمت لپاره یې دده نه پرته بل ثوک نوي ،ړوند ،ګوډ ،شل اودمزمن مرض لرونکی به هم دجهادله وجوب څخه خلاص وي ،پرده کوم حرج نشته ، دچاچې سترګې کمزورې وي او دوسلې دساتلو لپاره ورسره ثوک وي ،په ده هم جهاد واجب ګرځي ..................

مَنْ يَمْنَعُهُ الإِمَامُ مِنَ الْخُرُوجِ فِي الْجِهَادِ :

۲۲ - صَرَّحَ الشَّافِعِيَّةُ وَالْحَنَابِلَةُ بِأَنَّهُ يُسَنُّ لِلإِمَامِ أَوْ نَائِبِهِ مَنْعُ مُخَذِّلٍ وَمُرْجِفٍ مِنَ الْخُرُوجِ وَحُضُورِ الصَّفِّ وَإِخْرَاجِهِ مِنْهُ مَا لَمْ يَخْشَ فِتْنَةً ، بَلْ يُتَّجَهُ وُجُوبُ ذَلِكَ عَلَيْهِ حَيْثُ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهِ حُصُولُ ذَلِكَ مِنْهُ وَأَنَّ بَقَاءَهُ مُضِرٌّ بِغَيْرِهِ (نهاية المحتاج ۸ / **۵۷** ، والمغني ۸ / **۳۵۱** ، وروضة الطالبين ۱۰ / ۲۴۰ . ).

وَالْمُخَذِّلُ مَنْ يَصُدُّ غَيْرَهُ عَنِ الْغَزْوِ وَيُزَهِّدُهُمْ فِي الْخُرُوجِ إِلَيْهِ مِثْلُ أَنْ يَقُولَ : الْحَرُّ أَوِ الْبَرْدُ شَدِيدٌ ، وَالْمَشَقَّةُ شَدِيدَةٌ ، وَلاَ تُؤْمَنُ هَزِيمَةُ الْجَيْشِ وَأَشْبَاهُ هَذَا . يَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ : { لَوْ خَرَجُوا فِيكُمْ مَا زَادُوكُمْ إِلاَّ خَبَالاً وَلأَوْضَعُوا خِلاَلَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ (سورة التوبة / ۴۷ . ) }.

ژباړه :هغه ثوک چې امام یا مشر یې له خروج نه منع کړي ،دجهاد وجوب پرې نشته ،شوافع رح او حنابله رح وایي چې امام ته سنت داده ،چې داسې ثوک له خروج څخه را ایسار کړي ،چې هغه مخذل او مرجف وي ،مخذل هغه ثوک دی، چې دسختي ګرمۍ ،یخنۍ ډیرو سختیو ،دلښکردشکست او

نوروپلمو په جوړولو خلک له جهاده را ایساروي او پښیمانه کوي یې ،مرجف هغه چاته وایې چې خلکو ته وایي :چې سریه یا هغه دمجاهدینو دلګی له منځه تللی دی او هیچاپسې کمک او مرسته ورنه وړه اونه ددوئ دکفارو داهلاک وسه وه .................همد اسې به خلیفه یا جهادي امیرهغه چاته دجهاد تللو اجازه نه ورکوي ،چې هغه دکفارو لپاره تجسس کوي او مجاهدینو پټ احوال ورته رسوي ،اونه هغه څوک چې دمجاهدینو ترمنځ بد بیني او اختلاف پیدا کوي ،ځکه دا خلک فساد ته لمن وهي او جهادته ضررناک دي ،خوکه بیا هم ددوئ څخه څوک له مجاهدینو سره لاړ ،نو نه به غنیمت کې برخه سهم ورکول کیږي او نه رضیخه یا لږ شئ !ددې څخه ،اګرکه دوئ سره مسلمانانو غلبه ترلاسه کړي ،خو ددوئ اراده فساداو نفاق وه، نو ځکه ترې بې برخي شول ،

قِيل فِي التَفْسِيرِ: لأَوْقعُوا بَيْنَكُمُ الاِخْتِلافَ ، وَقِيل: لأَسْرَعُوا فِي تَفْرِيقِ جَمْعِكُمْ (المهذب ۲ / ۲۳۰ ).

وَالمُرْجِفُ هُوَ الذي يَقُول: هَلَكتْ سَرِيَّةُ المُسْلمِينَ وَمَا لهُمْ مَدَدٌ وَلاَ طَاقَةَ لهُمْ بِالكُفَّارِ وَنَحْوُ هَذَا ؛ لِقَوْلِهِ تَعَالى: { وَلَكِنْ كَرِهَ اللهُ انْبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيل اقْعُدُوا مَعَ القَاعِدِينَ (سورة التوبة / ۴۶ .) }.

وَلاَ يَأْذَنُ لِمَنْ يُعِينُ عَلى المُسْلمِينَ بِالتَّجَسُّسِ للكُفَّارِ ، وَإِطْلاعِهِمْ عَلى عَوْرَاتِ المُسْلمِينَ ، وَمُكَاتَبَتِهِمْ بِأَخْبَارِهِمْ ، وَدَلاَلتِهِمْ عَلى عَوْرَاتِهِمْ ، أَوْ إِيوَاءِ جَوَاسِيسِهِمْ ، وَلاَ مَنْ يُوقِعُ العَدَاوَةَ بَيْنَ المُسْلمِينَ وَيَسْعَى بِالفَسَادِ ، للآيَةِ: { وَلكِنْ كَرِهَ اللهُ انْبِعَاثَهُمْ } ؛ وَلأَنَّ هَؤُلاَءِ مَضَرَّةٌ عَلى المُسْلمِينَ فَيَلزَمُهُ مَنْعُهُمْ (المغني ۸ / ۳۵۱ ).

وَإِنْ خَرَجَ مَعَهُ أَحَدُ هَؤُلاَءِ لمْ يُسْهَمْ لهُ ، وَلمْ يُرْضَخْ ، وَإِنْ أَظْهَرَ عَوْنَ المُسْلمِينَ ؛ لأَنَّهُ يُحْتَمَل أَنْ يَكُونَ أَظْهَرَهُ نِفَاقًا وَقَدْ ظَهَرَ دَليلُهُ ، فَيَكُونُ مُجَرَّدَ ضَرَرٍ فَلاَ يَسْتَحِقُّ مِمَّا غَنِمُوا شَيْئًا ، وَإِنْ كَانَ الأَمِيرُ أَحَدَ هَؤُلاَءِ لمْ يُسْتَحَبَّ الخُرُوجُ مَعَهُ ؛ لأَنَّهُ إِذَا مَنَعَ خُرُوجَ المُخَذِّل ، وَالمُرْجِفِ ، وَالجَاسُوسِ وَنَحْوِهِمْ ، تَبَعًا فَمَتْبُوعًا أَوْلى ؛ وَلأَنَّهُ لاَ تُؤْمَنُ المَضَرَّةُ عَلى مَنْ صَحِبَهُ (المغني ۸ / ۳۵۱ ، وروضة الطالبين ۱۰ / ۲۴۰ ).

هَذَا ، وَكُل عُذْرٍ مَنَعَ وُجُوبَ الحَجِّ مَنَعَ وُجُوبَ الجِهَادِ إِلاَّ خَوْفَ طَرِيقٍ مِنْ كُفَّارٍ ، فَإِنَّهُ وَإِنْ مَنَعَ وُجُوبَ الحَجِّ لاَ يَمْنَعُ وُجُوبَ الجِهَادِ ؛ لأَنَّ مَبْنَى الجِهَادِ عَلى رُكُوبِ المَخَاوِفِ.

که چیرته امیر دداسې خلکو څخه و ،نو بیا مستحب داده چې مجاهدین یې تر مشرۍ لاندې جهادته لاړنشي ......په لنډه به وو وایو چې هر هغه عذر چې دحج وجوب منع کوي ،نو هغه دجهاد وجوب هم منع کوي صرف لاره کې ددښمن ویره یې نشي منع کولای ،دا که څه هم حج منع کوي ،خو جهاد لپاره مانع نه ګرځي او دا ځکه چې مبنی دجهاد په مخاوفو او ویرو باندې ده.

ژباړه: ډاکټر غنچه ګل ارمان

# دصحرا زمری

# عمر مختار

## زوکړه او زده کړه:

عمر مختار په ۱۸۶۲م کال کې د لیبیا په ختیځ کې پرتې، دفنة نومي سیمې په جنزور کلي کې نړۍ ته سترګې وغړولې. په کوچني توب کې د پلار له سیوري بې برخې شو او د یتیم ماشوم په توګه رالوی شو.

لومړنۍ زده کړې یې په خپل کلي، جنزور، کې وکړې او بیا جغبوب نومي سیمې ته لاړ او هلته یې د نورو علماوو تر څنګ د سنوسي اصلاحي حرکت له مخکښ امام سید المهدي السنوسی څخه زده کړې وکړې. په دې اتو کلونو کې یې عربي ژبه، شرعي علوم ولوستل او قران مجید یې حفظ کړ، مګر څرنګه یې چې غوښتل، هغه ډول یې تعلیم بشپړ نه شو کړی.

استاذ سید مهدي سنوسي د ده له نجابت او د عقل له پوخوالي اغیزمن شو، همدا لامل وو چې د علماوو، قومي مشرانو او نورو مخورو په مجلسونو کې به یې نوم د هر چا په ژبه یادیده. سید المهدي به د ده په هکله ویل: ((که مونږ سره د عمر المختار په څیر لس کسان وي، زمونږ له پاره بس دي.((

د کایناتو خالق پرې داسې زیږ بدوي غږ، خوږه ژبه، ساحرانه جاذبیت او په خطاب کې د اغیزناکو کلماتو د غوراوي وړتیا پیرزو کړې وه چې د اوریدونکو زړونه به یې تسخیرول.

## جهاد او مبارزه:

عمر المختار د مجاهدینو په صفونو کې د لویدیځ سودان په سیمو کې په لیبي-فرانسوي جګړې کې وجنګید. نوموړي د جهاد تر څنګ د اسلام د لارې د بلونکي په توګه هم خپل مسؤلیت تر سره کړ.

کله چې صلیبي ایټالویانو د ۱۹۱۱م کال د سپتمبر په **۲۹** مه د عثماني خلافت پر ضد، چې هغه مهال یې لیبیا هم یوه برخه وه، جنګ اعلان کړ، عمر مختار د جهاد او مقاومت د صفونو په تنظیمولو پیل وکړ، او د صلیبي غلیم پر وړاندې یې سینه ډال کړه. ایټالویانو ته یې په ډیرو جنګونو کې د سر او مال درانه تاوانونه واړول.

عمر مختار او نورو سرښندونکو مجاهدینو په کلونو، کلونو خپلې مبارزې ته ادامه ورکړه، تر دې چې د ایټالیې فاشیست موسولیني یې د جګړې پر کړنلارې بیاکتنې ته اړ کړ. عمر مختار ته یې د خبرو اترو وړاندیز وکړ. هغه هم د نورې ویجاړتیا و او ویرانې د مخنیوي په خاطر وړاندیز ومانه او د ۱۹۲۹م کال د اپریل په ۲۰مه یې ور سره خبرې اترې پیل کړې. کله چې عمر مختار په دې وپوهید چې په پایله کې ترې غلیم د مال او چوکۍ د ژمنو په بدل کې د هیواد پریښودل، جهاد ته د پای ټکی کېښودل او تسلیمیدل غواړي، د غلیم ټول وړاندیزونه یې رد کړل او د یوه شریف او ستر مجاهد اتل په توګه یې د برې یا شهادت تر ورځې د جهاد ادامه غوره کړه.

عمر مختار چې کله د غلیم پر چل او درغلۍ پوه شو، د ۱۹۲۹م کال د اکتوبر په ۲۰مه یې د هیواد بچیان مخاطب کړل او ترې ویې غوښتل چې د یرغلګرو د لوبو په وړاندې ویښ واوسي.

## زمری د غلیم په ولکه کې:

د ۱۹۳۰م په اکتوبر کې په (سانیة) جګړې کې د دغه اتل عینکې وغورځیدې او چې کله ایټالوي عسکرو ته په لاس ورغلې، هغوی خپل مشرتابه ته یوړې. کله چې ګراتسیاني ولیدې، ویې ویل: اوس یې عینکې په لاس راغلې، یوه ورځ به یې سر په لاس راشي!

د ۱۹۳۱م کال د سپتمبر په یوولسمه نیټه عمر مختار (سلنطة) نومي ځای کې له خپلو شهسوارانو سره څار کاوو چې د ایټالوي دُښمن سترګې پرې ولګیدې. له خوا او شا یې محاصره کړ. عمر مختار د محاصرې د ماتولو او ځان ایستلو هڅه وکړه، تر وسه، وسه وجنګید، مګر کله یې چې اس د غلیم پر ګولیو ولګید، د اس له غورځیدو سره دا نومیالی مجاهد هم پربووت، او لاس یې داسې ټپي شو چې نه یې پرې ټوپک چلولی شو، او نه یې له ځانه دفاع کولی شوه. تر دې چې صلیبي دُښمن ته په لاس ورغی او هغوی ژر تر ژره د بنغازي لوی محبس ته ولیږداوو.

کله چې د دغه اتل مجاهد د نیولو خبر د هغه غلیم، ګراتسیاني، ته ورسید، هغه پرې باور نه کاوو، ځکه چې هغه د ده د پرله پسې ګوزارونو له کبله د ذهن د ارامولو په موخه پاریس ته تللی وو. ګراتسیاني باور نه کاوو چې د صحرا زمری به ریښتیا د دوی په منګولو کې اسیر شوی وي، زړه یې وار نه کاوو، ځکه یې نو د لیدلو له پاره په ځانګړې الوتکې کې بنغازي ته راغی او امر یې ورکړ چې عمر مختار دې د ده دفتر ته راوستل شي چې دی یې په خپلو سترګو وګوري.

ګراتسیاني د سپتمر په ۱۴مه بنغازي ته ورسید، او په سبا یې د ځانګړې محکمې د دایرولو اعلان وکړ.

کله چې ګراتسیاني ته وروستل شو، ترې ویې پوښتل: د څه له پاره دې د فاشیستي حکومت پر وړاندې دومره پرله پسې او سخته جګړه کوله؟

شيخ ځواب ورکړ: زما د دين او زما د هيواد په خاطر!

ګراتسياني: ستاسې څه باور وو چې پای به څه تر لاسه کړئ؟

عمر ځواب ورکړ: هيڅ شی، مګر ستاسې شړل... ځکه چې تاسې نيواکګر يئ. پر مونږ جګړه فرض ده، او بری د خدای له لوري دی!

ګراتسياني: ته چې د دومره جاه او نفوذ څښتن يې، که ته پاڅون کوونکو ته امر وکړې، په څو ورځو کې به هغوی زمونږ واکمني ومني او وسله به کېږدي؟

اتل ځواب ورکړ: زه هيڅ شی نه شم کولی، او زما امر په دې هکله هيڅ اهميت نه لري. مونږ قسم کړی چې يو به له بل پسې مرو، او دا چې نه به تسليمېږو او نه به وسله ږدو!!!

ګراتسياني وايي چې کله يې را څخه مخ ګرځاوو، د هغه له هيبته مې زړه وريږدېد. سره له دې چې ما ډيرې صحرايي او د نړيوالې کچې جګړې په لار اچولې وې، مګر سره له دې مې هم شونډې رپيدې او نورې مې خبرې نه شوې کولی، ځکه مې نو امر وکړ چې بيرته يې محبس ته بوځي او شپې يې محاکمې ته وړاندې کړي.

د عمر مختار له پاره صليبي غليم يوه بيړنۍ محکمه جوړه کړه، او په همدغې ناستې کې يې پرې د اعدام حکم صادر کړ.

## د تلپاتې کور په لور:

د ۱۹۳۱م کال د سپتمبر په ۱۲مه نيټه ور ته په زرګونو خلک او ټول سياسي بنديان راټول کړل شو، او دا اويا کلن زمري لاس تړلی د دار سر ته راوستل شو .صليبي غليم خپل ټول شته ځواکونه احضار کړي وو، الوتکې په هوا ګرځيدې چې د شور له کبله د اتل عمر مختار اواز څوک وا نه وري!

د سهار په پوره نهو بجو عالم، د خدی د لارې بلونکی، او د اسلام د لارې دغه ستر مجاهد، عمر مختار، جلاد ته وسپارل شو، او څو دقيقې وروسته يې خپل روح د کايناتو رب ته وسپاره. انا لله وانا اليه راجعون. روح يې ښاد، او لار يې له لارويانو ډکه!

# دملګرو ملتونو اسامبلۍ کې داوباماااعلان اوتر شا يې شوم اهداف

حسن زوی

دملګرو ملتونو په اسامبلۍ کې د سږ کال ۲۰۱۳ په عمومي غونډې کې چې د نړۍ د کابو ټولو هېوادونو مشرانو پکې ګډون کړی و د امریکا ولسمشر د ټولو ګډونوالو په حضور کې د خپلو خبرو په ترڅ کې وویل چې دالقاعدې مرکزي هسته له منځه وړل مو هدف وچې امریکا دا هدف ترلاسه کړی نو نړیوال ایتلاف په راتلونکي ۲۰۱۴ کال کې په افغانستان کې جګړې ته د پایې ټکی ګدي او د یاد کال تر پایه به ټول بهرني متحارب ځواکونه له افغانستان څخه ووځي ، ،

دا حقیقت ټولو نړیوالو ته لکه د لمر روښانه دی اوپدې اړه هیڅوک هم د دلایلو یاشواهدو وړاندې کولو حاجت نه محسوسوي چې امریکا او د ناټو په نوم د صلیبي اتحاد اشغالګرو ځواکونو د افغان مېړنیو مجاهدینو د ملاماتونکو ګوزارونو او افغان مومن غیرتي اومجاهد ملت د اوږد جهادي مقاومت او احساس په وړاندې له رسوایۍ ډکه ماتې خوړلې ده ؛ ماتې خوړلو او روحیات بایللو ټولو بهرنو فوځیانو اوس دلوړوعزائمونه دبرخمنو ، اتلو اوفاتحو مجاهدینو په مقابل کې د مخامخ جګړې توان په کلی ډول له لاسه ورکړی ځکه خو د جنګ د هر ډګر نه په تېښته دي اوپه ډېر سرعت د خپلو فوځي اډو پورې خپل ځانونه محدود وي خو دمجاهدینو په مېړانۍ او فدا کارۍ آفرین چې دجنګ له ډګرونو دا تښتېدلي صلیبي ځواکونه په خپلو مرکزونو کې هم په ارام نه پرېږدی ، په هېواد کې یې یوه فوځي اډه هم د دوئ د حملو نه مصئونه نده پاتې په هر مرکز یې ډلې ډلې فدایان ورننوځي او دراندہ مالي او ځاني تاونونه وراړوي ؛ او دیوې اډې نه بلې ته تلونکی داشغالګرو یوکاروان ترې هم خوندي نه شي تېرېدای ؛ همدا نن د دسمبر په ۳۰ مې نېټې چې دا څو کرښې لیکم په هلمند کې د شوراب

امریکائې سترې هوايې اډې د یوې دروازې مخې ته یو مجاهد خپل د بارودو ډک کرولا موټر د غاصبو فوځیانو د ټانکونو سره جنګولی چې له امله یې ۱۲ امریکايې فوځیان مړه او ۴ ټانکونه یې تخریب شول.

د اشغالګرو ځواکونو پرضد چې کله په افغانستان کې جګړه ګرمه او ددې ځواکونو ځاني او مالي تلفات د هرې ورځې نه بلې ته په زیاتېدو شول نو هماغه وخت ددوئ لپاره د افغانانو د تاریخ رامخې ته کولو ، په ناسمو پرېکړو د بیا غورکولو او د دې هېواد نه د پښو سپکولو ښه مناسب وخت وترڅو له یوې خوا د بې ګټو سترو مالي او ځاني تاوانونو نه خوندي پاتې شوي وای او له بلې خوا د غریبو افغانانو پرضد بې نتیجې ظلم او وحشت ته د طول ورکولو له امله دامریکا بدنامي هم دومره نه وای زیاته شوې چې دا ځومره زیاته شوه خو د غاصبو ځواکونو له بده مرغه چې مشري یې دهغه امریکا په غاړه وه چې ټول تاریخ یې په غصب او اشغال کې تېرشوی او په نړۍ کې ځان د یواځني لوی ځواک ګڼلو له امله په خپلو مادیاتو ، عصري ټیکنالوژۍ او په جنګي وسایلو دومره مغروره وه چې پرې د مجاهدینو له لورې د ښو قوي حملو او ورته د تاوانونو رسولو سره سره هم لاددې خبرې منلو ته نه تیارېده چې طالبان داسې قوت دی چې د نړیوالو غاصبو ځواکونو پرضد د اوږدې مودې لپاره جنګ جاری ساتلای شي ؛ امریکابیا مجبوراً د مجاهدینو زور ومنلو خو ایله هغه وخت چې جنرالانو یې دا اعترافونه پیل کړی و چې ,,ددې جنګ ګټل زموږ لپاره ناشوني دي ،،

هغه وخت هم ددې و چې امریکا د جنګ دلازیاتو تاوانونو نه د ځان او خپلو متحدینو د ژغورلو لپاره د جنګ ودرولو او زموږ د هېواد اشغال ته دپای ټکي اېښودلو معقول اقدام کړی وای خو تعجب دی د امریکا په حریص نظراوفکر چې پکې د ناکامۍ په دې حالت کې لاهم په جنګ کې د نغښتو اهدافو امېدونه ترهغې تاوېدل چې خبره د ناټو تر ټوټه کېدو او د داسې شرمونکې ماتې راورسېده چې اوس یې سره دټولو کوښښونود پټولو ټول امکانات له منځه تللي .

اوباما په خپلې وینا کې ویلي دي چې موږخپلو اهدافو ته رسېدلي یو اوډالقاعدې هسته موله منځه وړېده ؛ اوباماپه خپلې ویناکې دخلکو په سترګوکې دخاورو اچولو اوپه خپلې ماتې دپردې راغوړولو هڅې کړېدې خودا ناکامې هڅې دي ؛ اوباما په دوه ګوتولمرپټول غواړي خو لمر په دوه ګوتو نه پټېږي ؛ ټوله نړۍ پدې پوهېږي چې افغانانو پخپله دخپل هېواد دازادۍ اودلته دیوخپلواک سوچه اسلامي واکمنۍ دبیا راوستلو لپاره داشغالګروپرضد دکمزورو چیریکي عملیاتو نه جهاد پیل اودولس کلونه پس یې دډېرو سترو قربانیو په برکت

دې ځای ته راورسولو چې بهرني اشغالګر يې ترخپلو فوځي اډو او داخلي لاسپوڅي يې دولايتونوتراوولسواليوترمرکزونومحدود کړيدي او پدې منځ منځ کې يې بهرنيانوته دومره سترځاني او مالي تاوانونه وراړولي دي چې له امله يې نورد بهرنيانولپاره دلته پاتې کېدل ناشوني شويدي ځکه خوهريو زمونږد هېواد نه د تېښتې نېټې اعلانوي او د شرمونکې ماتې سره يوځای د دې هېواد نه کډې باروي ؛ طالبان په يوې يوې حملې غونډې غونډې ولسوالئ نيسي ؛ دولايتونو د سقوط طرف ته خبره په ډېرې تېزئ روانه ده نو اوس دې نړيوال پخپله قضاوت وکړي چې آيا امريکا خپل اهداف ترلاسه کړي که د ډېرې تاريخي او سترې ماتې سره يو ځای زمونږ له ټاټوبي تښتي ؟

په رسمي ډول د جنګ بندول او د خپلو فوځيانو ويستل اوس هم ښه اقدام دی لږ تر لږه د باقی پاتې بهرنو فوځيانو ژوند به وژغورل شي ؛ په افغانانو تپل شوې جګړه به بنده او دلته به يوه دامن نه ډکه فضا قائمه شي.

خو اوباما چې په خپلې وينا کې دمتحاربو توری زيات کړی نو داسی ښکاري چې د امريکا په اوړو کې لاهم ډېره زياته شګه ده ؛ امريکا چې دکابل اداري سره د امنيتي تړون رامنځته کولو ته نېږدې شويده ؛ غواړي چې د دې تړون په نوم د ۲۰۱۴ نه پس هم خپل اشغال اوږد او خپلو عسکر و ته قانوني مصئونيت ورکړي ؛ معلومېږي دا چې د امريکا ارادې ښه نه دي او لاهم خپلو شوموا هدافوته د رسېدلو کوششونه کوي خو امريکا بايد پدې پوه شي چې افغان هر بهرنی فوځي ته د غاصب په نظر ګوري او دلاسپوڅې اداري سره د يو کاغذ په امضا کولو اشغالګروځواکونو ته د سپينو بازانو په نظرنه شي کتلای.

افغانان پدې باوري دي چې امريکا چې د ټولو متحدينو سره يوځای يې د مجاهدينو په مقابل کې ماتې وخوړه د ۲۰۱۴ نه پس پاتې کېدونکي دا څوزره فوځيان به يې هم د سخت شکست سره مخامخ او بيا به ډېر ژر همداسې يو اعلان وکړي لکه چې نن يې وکړو خو هغه به ډېر شرمونکې وي نو دا اوس په امريکا ده چې ټول فوځونه وباسي او که ځان د يوبل ستر شرم سره مخامخ کوي ؟

# داسلام غزوات اوسرایا

**شپاړلسمه برخه** **ابو ظهیر**

## سویق غزوه

سویق غزوي ته رسول الله (ﷺ) دذی الحج په **۵** مه نیټه دیکشنبې په ورځ روان شو ، په مدینه منوره کې یې ابولبابه بن المنذر العمری خپل نایب او خلیفه وګرځاو (الطبقات الکبیر ۱ټوک ۲۲۲مخ)

ځېرنه: دادعلامه ابن سعد روایت دی چې دذي الحجې میاشت وه، لیکن دنورو تاریخ پوهانو اوسیرت لیکونکو په رایه: یادذي الحج وه یا محرم، اویا صفر وه .

خوبنا په هرصورت ددې غزوي شالید په بدر کې دمشرکانو شکست و ، کله چې هغوئ مکي مکرمې ته خجالت او شرمنده ستانه شول،ابوسفیابن حرب دا سوګند و خوړ چې ځومې په مدینه حمله نه وي کړې، له رسول الله (ﷺ) اودهغه له ملګرونه مې غچ نه وي اخستی، ترهغه به دجنابت غسل نکوم په بل روایت تیل یاخوشبو به نه لګوم دزهري په روایت: هغه له دوه سوه سپرو سره یوځای دذی الحج په شروع کې روان شو ،دابن کعب په روایت:له څلویښتو سپرو سره ؛ دعلامه ابن سعد په روایت:کله چې ابوسفیان النجدیه ته ورسید دشپې بنو نضیرته ورغی ، "حیي بن اخطب " ته یې دروازه وټکوله ،څوله هغه څخه درسول الله (ﷺ) اود دملګرو حالت یې ځانته معلوم کړي، هغه ورته ددروازې پرانستلونه انکار وکړ، بیا "سلام بن مشکم" ته یې دروازه وروټکوله ، هغه دروازه بیرته کړه ، میلمستیا یې ورکړه شراب یې پرې وڅکل اودرسول الله (ﷺ) له حالت یې خبر کړل

کله چې دمه شول بیا د مدینې منورې نه ددرې میله په واټن بیرون "العریض" سیمې ته لاړل، دخرماوو په یو باغ کې یې دابن سعد په روایت دانصارو یومزدورقتل کړ او د زرقانې په روایت :یو انصاري اویو مزدوریې قتل کړل ،ونو او وابښوته د اورونو اچولو وروسته تښتیدل دابن سعد په روایت: څوکورونه یې هم وسیزل (ابن سعد ۱ټوک ۲۲۲مخ )

کله چې رسول الله (ﷺ) خبر شو ، سملاسي یې صحابه راټول کړل له مهاجرینو او انصارو څخه یې دوه سو تنه واخستل ،د ابوسفیان اودهغه دملګرو دپل په نښو په هغوئ پسې روان شو ، ابوسفیان اودهغه ملګري په منډه اوتیښته وو ، ددې لپاره چې رسول الله (ﷺ) ته ژوندي په لاس ورنشي دخپلو بارونو دسپکولو په غرض یې څوله ستوانوډکي خلتي چې ځانوسره یې دخوراک اوله لارې دتوښې په غرض

راوړي وي په لار کې وغورځولي ،هغه ټولي دمسلمانانو په لاس ورغلي، له دې وجې د دې غزوي نوم هم دسويق غزوه يا "ستوو الاغزوه" راغلی (زرقاني ۱ټوک ۴۵۸مخ ابن سعد ۱ټوک ۲۲۲مخ)

هغوی مسلمانانو ته په لاس ورنغلل، په دې سفر کې رسول الله (ﷺ) پنځه ورځې له مديني منوري نه بيرون و ، دذی الحج په ۹ نيټه بيرته مديني ته ستون شو ،دذی الحج په لسمه يې دلوی اختر دوه رکعته لمونځ ادا کړ ،دوه مالونه يې قرباني کړل او هم يې مسلمانانو ته دقربانۍ حکم وکړ دا دمسلمانانو لومړی قرباني وه (زرقاني ۱ټوک ۵۲۰مخ)

**غطفان غزوه**:

له سويق غزوي څخه د ستنيدو وروسته دذی الحج پاتې ورځو کې رسول الله (ﷺ) په مدينه منوره کې وه ،چې ورته خبر راغی چې بني ثعلبه ، اوبني محارب (کوم چې دغطفان قبيلي ښاخونه دي ) د نجد په ذي امرکې ددې لپاره راغونډيږي ،چې د مديني منوري په شاوخوا دلوټ تالان کولو لپاره يرغل وکړي او دبنې محارب قبيلي يو تن "دعثور بن الحارث غطفاني يې سردار دی ، دادهجرت دريم کال(پينځويشتمه مياشت) ودابن کثير په روايت:د محرم مياشت وه اودابن سعد په روايت: دربيع الاول وه ، رسول الله(ﷺ) په غطفانيانو باندې دبريد په موخه له مديني منوري نه دنجد په لور روان شو ، مدينه منوره کې يې عثمان بن عفان (ﷺ) خليفه پريښود ، له ځان سره يې څلور سوه پنځوس صحابه واخستل ،غطفانيان چې درسول الله (ﷺ) له ورتګ خبر شول هغوئ غرونو ته وتښتيدل ، په "ذي القصه "نومي ځای کې مسلمانانو "دبني ثعلبه" يو تن ونيو ، هغه جبار نوميد ، رسول الله (ﷺ) ته وروستل شو ، هغه وويل :کله چې خلک ستا له راتلو خبر شول ، نو غرونو ته خواره شول ، رسول الله (ﷺ )هغه ته داسلام بلنه ورکړه ، هغه مسلمان شو او له بلال (ﷺ) سره يې کړ، دابن کثير په وينا:رسول الله (ﷺ) دصفري ټوله مياشت هم هلته تيره کړه، خو هيڅوک يې مقابلي ته رانغلل ، رسول الله (ﷺ) اوصحابه وو هغوئ ليدل چې دغرونو په څوکو باندې وو خوجنګ ونشو ، پرته له جنګه رسول الله (ﷺ) بيرته مديني منوري ته ستون شو(البدايه والنهايه ۴ټوک ۲مخ دابن سعد ۱ټوک ۲۲۵مخ )

په دې سفر کې دا واقعه هم و شوه ، رسول الله (ﷺ) اوصحابه چې کله بيرته ستنيدل ،په لار کې ورباندې باران وشو ،دکوم په وجه چې درسول الله (ﷺ) اوصحابه وو کالي لامده شول ، رسول الله (ﷺ) خپل دتن کالي په يوه ونه ددې لپاره وغوړول څو وچ شي خپله د هم هغې ونې لاندې څملاست ، اعرابيانو وليده ! هغوئ خپل سردار "دعثوربن الحارث" ته خبر ورکړ چې محمد ﷺددې ونې لاندې يواځې ويده دی ، ته ورشه ! قتل يې کړه ، "دعثور" ځان سره يوه ښه تيره توره واخسته اوراغی درسول الله (ﷺ) له سرميږي له بره ودريد اوويې ويلې:

اې محمده !وايه نن به تا څوک ځما له تورې وژغوري !

رسول الله (ﷺ) وویل: الله تعالی به مې ژغوري !

درسول الله (ﷺ) ددې وینا سره سم جبریل امین هغه سینه کې په سوک وواهه ، توره یې له لاس نه پریوته، رسول الله (ﷺ) توره پورته کړه ، "دعثوربن الحارث "ته یې وویلې: ته وایه ! نن به تا څوک ځما له توري وژغوري ! هغه وویلې: هیڅوک نه ! اسلام یې راوړ و داکلمه یې وویله: لا اله الا االله محمد الرسول الله اوژمنه یې وکړه چې نوربه تا سره دمقا بلې لپاره خلک راټول نکړم ، رسول الله (ﷺ) "دعثور بن الحارث "ته دهغه توره بیرته ورکړه "دعثور" چې ترڅه ځایه لاړ بیرته راوګرځید ،رسول الله (ﷺ) ته یې عرض وکړ: " والله !ته له ما غوره یې " ! کله چې خپل قوم ته ورغی ،خلکو ورته ویلې: ته چې د کومې خبرې پسې لاړوې هغه څه وشول ؟ "دعثور" ور ته ټوله کیسه تیره کړه اووې ویلې: ناڅاپه ځما په سینه د سوک ګذار راغی ولګید ، چې په وجه یې زه ولړزیدم اوپریوتم ! په دې ځما باور راغی ، چې سوک وهونکي ، فرښته وه ، له دې وجې ما اسلام قبول کړ اودرسول الله (ﷺ) په رسالت ګواهي ورکوم !

هغه خپل قوم ته د اسلام بلنه ورکړه چې په اړه یې بیا دا ایت نازل شو :

یا ایها الذین امنوا اذکروا نعمة الله علیکم اذ همّ قومُ ان یبسطوا الیکم ایدِیهم فکفّ ایدِیَهم عنکُم (المائده ۱۱ایت) اې د ایمان څښتنانو د الله (ﷻ) هغه انعام یاد کړئ کله چې یوه قوم اراده وکړه چې په تاسو لاس پورته کړي الله (ﷻ) د هغوئ لاس ونیو !

امام بیهقي وایي: ددغه ډول واقعه په "ذات الرقاع غزوه" کې پېښه شوي ، علامه واقدي په "غطفان غزوه" کې راوړي ، دځینو په وینا: که دا محفوظ وي نو بیا دا دواړه جلا واقعې دي یوه په غطفان غزوه کې پېښه شوي اوبله په ذات الرقاع غزوه کې (البدایه والنهایه ۴ټوک ۲مخ ابن سعد ۱ټوک ۲۲۲مخ ) زرقاني وایي: چې د محققینو په رایه دا دواړه جلا ، جلا پېښې دي (۲ټوک ۱۲مخ )

## بحران یادبنوسلیم غزوه :

له غطفان غزوې څخه د رسول الله (ﷺ) دستنیدو وروسته په "ربیع الثاني" کې خبر راغی چې په بحران نومې سیمه کې چې د "بحران الفرع" په شاوخوا کې ده، د "مدینې اوفرع" ترمنځ "۹۲" "میله مسافت دی ، هلته "بنو سلیم" (دچا په وجه چې دې غزوې ته د بنو سلیم غزوه هم ویل شوي ) د اسلام په مخالفت کې راغونډیږي ! د دې خبر وروسته رسول الله (ﷺ) ددرې سوه صحابه وو سره یوځای دبحران په لور روان شو ، مدینه منوره کې یې عبد الله ام مکتوم (رضی الله عنه) نایب پرېښود اوپه ډېره تیزۍ یې ځانونه بحران ته ورسول ، هلته راغونډ شوي خلک وتښتیدل ، له دې وجې دجنګ نوبت رانغی، هلته ټول لس ورځې تم شو ، پس دلسو بیرته مدینې منورې ته ستون شو ( ابن سعد ۱ټوک ۲۲۷مخ ) نوربیا

# بدخشان او طالبان




خبیر احمد ' مجاهد '

له بنایسته ډیرې مودې راهیسې له بدخشان څخه د طالبانو د بریاوو راپورونه اوریدل کیږي ، چې هلته په ځینو ولسوالیو کې هغوی قبضه اوولکه لري او خوځله یې د کابل رژیم ستر عملیاتونه هم په شاوتمبول ؛ خو د کابل رژیم د دفاع او کورنیو چارو وزارت مصنوعي جنرالان د دغو راپورونو په نشر سخت ناراضه کیږي او له جزیاتو ورکولو یې ډډه کوي ، ترڅو د بدخشان ولایت له پیښو څخه خلک ناخبره وساتي.

دغو پلاستیکي جنرالانو له تیرو ۱۳ کلونو راهیسې د خپلو تبلیغاتو ماشینونه ټول د افغانستان جنوب او ختیځ ته نصب او متوجه کړي او چې هرڅه به هلته پیښ شول ، نو لنډ په لنډ به یې پړه په ګاونډي هیواد پاکستان ورواړوله چې وسلوال له پولې په اسانی رااوړي بریدونه کوي او بیرته ځي ، یاني دغو شرمیدلو ددې پرځای چې اصلي خبره افغانانو ته وکړي او په خپلې ناتوانی او شکست باندې اعتراف وکړي ، سمدلاسه ګاونډی هیواد پکې تورنوي او یولوی ببوترې جوړوي.

له تیرو ۲ او ۳ کلو نو راهیسې د شمال په کندوز ، تخار ، او نورو برخو کې طالبانو د پام وړ نظامي تحرکات او لاسته راوړنې درلودې ، خو ډالرخوري میډیا د کابل چارواکو په خاص رمز او هدایت که به هرڅومره لویه پیښه هم وشوه پرده به یې پرې واچوله او خبرې اژانسونو او رسنیو ته به یې هم ګوت ځنډنه کوله چې پام خبر کړ مټ خپورنکړي چې بیا طالبان روحیه پیدا کوي او په شمال کې د هغوی نفوذ زیاتیږي.

خو د بدخشان په ولایت کې د طالبانو له لوري ( په ځانګړي ډول د سږ کال بریالیو عملیاتو ) چې په نتیجه کې یې ګڼې سیمې اوولسوالی لاس ته ورغلې ، خبره یې د کابل ډنډورچیانو له ګوتو رااو ویستله

او په ړومبي وار خلکو ته ښکاره او په ډاګه شوه چي طالبان تنها په جنوب او ختیځ او مرکزي ولایتونو کې نفوذ او سلطه نلري ، بلکي د بدخشان په څیر هغه ولایت او ستراتیژیکه سیمه باندي چې تلوالې او کابل رژیم هغه دڅان لپاره بې خوفه او بې خطره ځمکه بللې وه هم پراخ واک او دولس مرسته لري.

دوه اوونی وړاندي د کابل د دفاع بزدله وزیر ( بسم الله خان ) بدخشان ته په یوه سفر کې دوردوج ولسوالی کې په یوې څنډي کې صرف د دوساتو لپاره له چورلکي ښکته شو او اخوادیخوا یې دوربین واچاو بیا یې دهوا په څپو کې اعلان وکړ چې نو موړي ولسوالی یې د طالبانو له لاسه وویستله ؛ ولې نه یې د ولسوالی تعمیر چاته وښوداو نه یې هم هغه دعوه ثابته کړه چې لسګونه طالبان یې دولسوالی دنیولو په مهال مړه او ژوبل کړي !؟

خو یوه اونی لا و تلي نه وه چي د بدخشان غیورو مجاهدینو نه دا چې دوردج ولسوالی په ګڼون پراخي او پاتې سیمي لاندې کړي او د رژیم دری زره مجهزو عسکرو او قوتونو ته یې شرمناکه تیښته ورکړه ، دوه نوري مهمې ولسوالی ( کران او منجان ) هم فتحه او ډول ډول وسلو او تجهیزاتو ډیپوګان اوزخیرې یې لاسته ورغلې.

د بدخشان اجیروالي ،چې دادیب په نامه یادیږي ددې پرځای چې خپل شکست ومني او حقایق ووایي ، بیرته یې هغه زړه ببولاله او خندنی وجه تکرار کړه چې د ( کران او منجان ) ولسوالیو په نیولو کې د ګاونډي هیواد استخباراتي شبکې لوی رول لوبولی !!!

ښایي درانه لوستونکي خبروي چې په بدخشان کې د اسلامي امارت دولایتي او جهادي تشکیل مسؤلین او افراد چې دا څو کاله تاکل شوی یو خو تړ ډیره حده تغیرنده پکې راغلی ، مهمه خبره داده چې هغوی په خپلو دیربطه سیمو او علاقو کې ژمي اودوبي میشت وي او حتی شاوخوا ولایتونو ته هم ندي تللي او راغلي ، علت یې دادی چې بدخشان غرنی ولایت دی او دتګ او راتګ پیچلی لاري لري او بیا ګاونډي هیواد پاکستان ته تګ او راتګ خو له حده زیات کړاونه لري ، چې دنا ادیب په وینا دې له پاکستان څخه طالبان تمویل او کمالات او پلان دې له هغه ځایه ورته راورسیږي !!؟

له بل لوري د بدخشان عام وګړي او مهم غیري دولتي شخصیتونه هم له رسنیو سره په خبرو کې د بدخشان دوالي ، تورونه بې ځایه بولي او ټوله پړه د چارواکو په غاړه وراچوي ، د دوست په نامه د بدخشان د فیض اباد استوګن وایي چې د دولتي چارواکو په خبرو باید هیڅ باور ونشي ، ځکه وردوج له ډیره وخته د طالبانو په لاس کې ده ، ولې د خپل شرم د پټولو لپاره یې پرې اعتراف نه کاوه ، هماغه وو چې دوه نورې ولسوالی هم طالبانو ترې ونیولې ، د هغه په اند مهم علت یې دادی چې د بدخشان اداره په فساد ، قاچاق او درغلیو کې تر دو غوړونو پورې ملوثه ده او هغوی پرته له خپلو شخصي منافعو

دولس ستونزو اومشکلاتو ته هیڅ ارزښت نه ورکوي ، له همدې امله خلکو له طالبانو سره همکاري وکړه اوولسوالی طالبانوونیولې.

ددوست دغه خبري چې هشت صبح ورځپاڼې رااخیستي وایي: دوردوج ولسوالی طالبانو دیوې ورځي لپاره په تکتیکي ډول پرېښوده ، هماغه وو چې بسم الله خان اعلان وکړ چې نوموړي ولسوالی هغوی ونیوله ، ولې په سبا ورځ طالبان بیرته راښکاره شول دکمینو نو او مخامخ حملو په نتیجه کې یې دولتي قوتونو ته درانه زیانونه واړول اوهم یې ولسوالی بیرته ترلاسه کړه او انبارونه نوي وسلې اومهمات یې قبضه کړل.

همدغه ډول نوراغا چې دخاش ولسوالی دانکشافي شورا مشردی وایي: له څوکلونوراهیسي دبدخشان په ځینوولسوالیو کې لوی عملیات کیږي او په میلونونه ډالرپرې مصرفیږي اوعسکروته دسردرانه زیانونه اوړیدلي ، خوهیڅ کومه نتیجه یې نده لرلي ،بلکې طالبان ورځ تربلې تقویه کیږي او له اردو څخه پراخ وسایل اووسایط نیسي اوپه ډاډه ډول تري استفاده کوي.

نوموړی همدارنګه وایي چې تنها وردوج ، کران او منجان ولسوالی دطالبانو په لاس کې ندي ، بلکې ۴ نورې ولسوالی چې ټولې ۷ ولسوالی کیږي په هغوکې هم طالبان موجوددي اوخپل اجرأت سره ته رسوي.

دکتونکو په اند ، په بدخشان کې تردې دمه چې دکابل رژیم څومره عملیات سرته رسول شوي ،پرته له شرمناکي ماتي یې بل هیڅ شی ندی ترلاسه کړي ، عمده علت یې دادی چې دنوموړي ولایت پرګني له دولتي داړمارانو تردوسپوږموراغلی ،ځکه دهغوی چوراوچپاول ، ستم او اخلاقي فساد په سترګووینې ، نو دخپلې ایماني جذبې له مخې طالبانو ته پناه وروړي اوپه دې خبره باورلري چې طالبان یې پت اوعزت ساتي ، جبر اوزیاتی نه ورسره کوي او امنیت یې خوندي کوي.

،داسې کره راپورونه هم دي چې عام ولس طالبانو ته لازمي اسانتیاوي برابروي ، خوراک اوڅښاک ورکوي او هغه جنګي اسباب اومرمی چې دروس په خلاف دجهاد دوخت ورته پاتي دی زنګونه یې ورته صفاکوي او ان مرکزونو اوسنګرونو ته یې وروړي ، چې دادانتهایي محبت اوایمانداری ښه اودمسؤلو طالبانو دښه چلند لویه علامه ده او هغه بالاخره ددې امید ښیي چې دنوموړي ولایت په پاتې سیمو به هم طالبان خپل سیوری غوړوي اودولس سراومال به خوندي کوي ( انشاالله )

دجوزجان ولایت دخمآب ،آقچه ، خان آقا ، درزاب او فیض آباد ولسوالیو څخه ۲۴تنو پولیسو ، عسکرو او اربکیانو خپلې وسلې په ځمکه کیښودې او داسلامي امارت له مجاهدینو سره یوځای شول ، دغو کسانو چې د اسلامی امارت ددعوت کمیسیون او د سیمیزو مجاهدینو دهلوځلو په نتیجه کې یې حقیقت او واقعیت درک کړل ژمنه وکړه چې نور به له کفارو او دهغو له غلامانو نه هیڅ ډول حمایت نه کوي او د هیواد دآزادۍ او خپلواکۍ لپاره به د خپلو مجاهدینو ورونو ترڅنګ پاتي کیږي ، دیادو کسانو نومه په لاندي ډول دي:

## نور ستا قضاوت

۱ـ عبدالوهاب دحق نظر زوی
۲ـ عبدالقهار د دانک اتار زوی
۳ـ حفیظ الله دحق نظر زوی
۴ـ حیات مراد دمحمد امین زوی
۵ـ شمین د امام نظر زوی
۶ـ چاري دروزي زوي
۷ـ محمد ابراهیم دموخی زوی پورته کسان دخمآب ولسوالۍ اوسیدونکي دي
۸ـ محمدصادق دنورمحمد زوی
۹ـ محمدبشیر د محمد یعقوب زوی
۱۰ـ محمد یعقوب د فیض الله زوی
۱۱ـ عبدالمنان دعبدالله زوی
۱۲ـ عبدالرشید د محمد زوی
۱۳ـ عبدالرحیم د خدای نظر زوی پورته کسان د آقچې ولسوالي اوسیدونکي دي
۱۴ـ الله قلي دعبدالرحیم زوی
۱۵ـ معراج د عبدالمجید زوی
۱۶ـ فیض الله دمحمدعظیم
۱۷ـ حبیب الله د احمد زوی
۱۸ـ نقیب الله دقمر الدین زوی
۱۹ـ محیب الله دحاجي مجید زوی

**په جوزجان کې ۶۴ تنو پولیسو، عسکرو او اربکیانو خپلې وسلې په ځمکه کیښودې او له مجاهدینو سریوځای شول**

۲۰ـ آورز د ابراهیم زوی
۲۱ـ محمود د محمد مراد زوی
۲۲ـ محمد شریف اربکي په اولاد کلي
۲۳ـ عبدالرزاق د حاجي رؤوف زوی
۲۴ـ انصار معاون د خان محمد زوی
۲۵ـ ګل آغا د محمد مراد زوی
۲۶ـ عبدالودود د محمد مراد زوی
۲۷ـ عبدالمنان د عبدالسلام زوی
۲۸ـ محمد موسی د عبدالاحد زوی
۲۹ـ عبدالغفار د عبدالکریم زوی
۳۰ـ بازار د حاجي بای زوی
۳۱ـ عبدالاحد د محمد زوی
۳۲ـ محمد عمر د حاجي اکرم زوی
۳۳ـ محمد امین د محمد اکرم زوی
۳۴ـ عزت الله د محمد مراد زوی
۳۵ـ محمد مراد د محمد عظیم زوی
۳۶ـ علی محمد د عبدالرحیم زوی
۳۷ـ حمید الله د رحمت الله زوی
۳۸ـ محمد سخي د عبدالخالق زوی
۳۹ـ نقیب الله د نجیب الله زوی
۴۰ـ خیر محمد د مؤمن زوی
۴۱ـ محمد شریف د حاتم زوی
۴۲ـ روزی محمد د بابه رحیم زوی
۴۳ـ محمد آصف د عبدالرشید زوی
۴۴ـ ذبیح الله د محمد نبي زوی
۴۵ـ محمد آصف د عبدالحي زوی
۴۶ـ ابراهیم د مهدي زوی پورته کسان د درزاب ولسوالي او سیدونکي دي

کسانو او خادیانو ترمنځ سخت اختلاف دی، دوي تر او سه پدې نه پو هیږي چي فدایي څرنګه وتوانېد چي کندک ته دننه او د مهمو چارواکو په منځ کي فدایي حمله ترسره کړي، خلاصه دا چي دوي په خپل منځ کي سخت سره بې اعتماده شوي.

**پوښتنه** : مولوي صاحب محترم تاسو مخکي له سیمي د بهرنیو ځواکونو د تېښتي خبره وکړه که وو ایاست چي د خارجیانو تېښتي پر داخلي ګوډاګیانو څومره تاثیر کړیدی ؟

**ځواب** : د خارجیانو په تښتېدلو سره یې ګوډاګیان الحمدلله په ډېر وارخطا حالت کي قرار لري او پر دوو ډلو وېشل شویدي: لومړۍ ډله یې هغه ده چي د حقایقو په درک کولو سره یې پر خپلو تېرو کړو توبه ایستلې او د اسلامي امارت له مجاهدینو سره یو ځاي شویدي او دا بهیر لا ګړندی روان دی او بله ډله یې هغه ده چي لا د ګوډاګی رژیم په لیکو کي د مظلوم اولس په ځورولو بوخته ده، هره ورځ په مختلفو بهانو د خپل اولس په شهادت رسولو، بندي کولو او غلاوو سره ځان د دنیا او آخرت تاواني کوي، دغه ډول خلکو ته د اسلامي امارت مجاهدین سخت متوجه دي چي ترڅو یې دغه خلک یا له منځه نه وي وړي او یا یې توبې ته نه وي اړ ایستلي ترهغو به ددوي په وړاندي برحقې مبارزې ته دوام ورکوي.

**پوښتنه** : مولوي صاحب تاسو په خپلو خبرو کي ددښمن د تسلیمدونکو کسانو په اړه خبره وکړه که مهرباني وکړي په ارزګان ولایت کي ددښمن د تسلیمېدونکو کسانو په اړه درنو لوستونکو ته لنډ معلومات ورکړی.

**ځواب** : هغه دقیق او کره معلومات چي مورږ د اسلامي امارت د جلب او جذب کمیسیون څخه ترلاسه کړي په تیرو اوولسو میاشتو کي په اروزګان ولایت کي **۵۲۹** تنه عسکر تسلیم سوي چي ۱۲۱ میله کلاشنکوفونه، ۲۱ میله ثقیل ماشیندار، ۸ آرپي جي راکټان، ۲ میله ایم شپاړلس ډوله پر مختللي توپک، دوه ۷۰ ټکه، یو ۱۰۰ ټکه، ۱۱ وړې مخابرې، ۲ هاوانه، ۲ دهشکې او۴ موټران د اسلامي امارت مجاهدینو ته تسلیم کړیدي.

په دومره زیات تعداد ددښمن دعسکرو تسلیمېدل ددې ښودنه کوي چي ګوډاګیان د خپلو بادارانو له تېښتي وروسته ډېر وخت ځان نشي ټینګولای او که خداي جل جلاله کول ډېر ژر به دګوډاګي رژیم دعسکرو د حقایقو ددرک کولو او تسلیمېدلو بهیر پراخ او ډله ایز شي او له الله جل جلاله څخه د سترو فتوحاتو او نصرتونو امیدلرو.

**پوښتنه** : داروزګان ولایت هغه سیمي چي دا مهال د مجاهدینو تر واک لاندي دي؛ تاسو یې څنګه اداره کوئ ؟ که په دغه سیمه کي د اسلامي امارت د اداري تشکیلاتو په اړه درنو لوستونکو ته معلومات ورکړی خوښ به سو.

**ځواب**: ارزګان ولایت لکه د افغانستان د نورو ولایاتو په څېر الحمد لله د اسلامي امارت له لوري مکمل اداري تشکیلات لري او دا تشکیلات په نظامي او ملکي دواړو برخو کې موجود دي، موږ په هره ولسوالي کې یو نظامي مسئول او یو د ملکي چارو مسئول لرو چې له دوي سره د تعلیم او تربیې، ارشاد او دعوت/جلب او جذب، مؤسساتو او شرعي محکمې مسئولین یوځای خدمت کوي او خپلې چاري سمبالوي، د اولسي او حقوقي مسائلو د حل په موخه د ولسوالۍ ملکي مسئول او قاضي شپه او ورځ د خلکو په خدمت کې وي او د دوي هري ستونزي ته د حل لاره لټوي.



همدارنګه د ولایت د ټولو اړوندو ولسوالیو مجاهدین فعال مخابراتي سیستم لري چې په خپل منځ کې درابطې، د نظامي فعالیتونو د انسجام او د پېښو د خبر رسولو لپاره د ولایت د مرکزي مخابرې سره په تماس نیولو کې ګټه ترې اخلي، د ولسوالیو د نژدې سیمو لپاره هم مخابراتي سیستم فعال دی او په ولسوالۍ کې سره نژدې مجاهدین د عملیاتو ، ترصد او معلوماتو لپاره ورڅخه ګټه اخلي.

**پوښتنه**: مولوي صاحب ! آیا ولسوالیو ته د خپل سفر په جریان کې مو له اولسي خلکو سره د خبرو پرمهال داسي ستونزه یا غوښتنه ترلاسه کړه چې اولس د اسلامي امارت له مشرانو پکې مرسته غوښتې وه ؟

**ځواب**: هو ،اولسي خلکو په هره سیمه کې له ما او د اسلامي امارت له مشرتابه نه په کلکه دا غوښتنه کول چې زموږ د اولادونو تعلیم او تربیې ته زیاته توجه وکړئ، د ارزګان ولایت متدین اولس له لسو کالو څخه زیاته موده کېږي چې د جګړو ، د اشغالګرو له مظالمو او د داخلي ګوډاګیانو له بې کفایته اداري ، فساد او ځور څخه کړېږي، اوس چې الحمد لله مجاهدینو د دغه ولایت زیاتي سیمي تر خپل واک لاندي راوستي او دا بهیر لا ګړندی روان دی ؛ دامنیت په تأمیندلو سره د دې زمینه مساعده شوي چې هلته زموږ بچیان نور د جهالت په تاریکیو کې پرېښنودل شي، د اسلامي امارت د تعلیم او تربیې کمیسیون له محترم مشرتابه نه مې هیله داده چې دغه ځوریدلي اولس ته چې اکثریت بچیان یې له تعلیمه بې برخي دي ؛ زیاته توجه وکړي او هلته مدرسې او ښوونځۍ په پراخه کچه پرانیزي.

د اولسـي خلكـو بلـه غوښـتنه د اسـلامي امـارت لـه مشـرتابه نـه داوه چـي دخلكـو دحقـوقي مسائلوپرسر د رامنځته شويو اختلافاتو پـه ليري كولـوكي ورسره مرسـته وكړي او پـه هره سيمه كي شرعي محكمې جوړې او حق حقدار تـه ورسوي، د خلكو ددغي غوښتني پـه برخه كي الحمد لله ډېر كارشوى او پـه اكثرو مناطقو كي شرعي محاكم عملاً خپل كارونـه پـرمخ بيايي او د لا پرمختـګ او بهترۍ لپاره به يې په راتلونكي كي انشاء الله نوري هڅي هم كوو.

**پوښتنه** : مولوي صاحب كه دمركې په پاي كي د اروزګان ولايت مؤمن اولس تـه كوم پيغـام لـرى مهرباني وكړئ !

**ځواب** : د ارزګان ولايت مسلمان ، پردين مين او مجاهد پرور اولس تـه مي پيغـام دادى چي دالله جل جلالـه پـه نصرت سره ستاسو مجاهدو بچيانو نړيـوال كفري يرغلګران مـات كړي او ډېر ژر بـه يې انشاء الله د تېښتي ږغ واورئ، مكار دښمن هم د خپلي تېښتي په ترخو شيبو كي ارام ندى ناست، هره شېبه دا فكر كوي چي ځنګه له مؤمنو افغانانو د بري تاج واخلي او دوي په خپل منځ كي په جنګ جګړو سره اخته كړي، د اروزګان د مسلمان اولس له هوښيارو مشرانو مي دا غوښتنه ده چي نور مـه پرېږدئ چي ستاسو اولادونه كفار او ددوي مزدوران په مكر او فرېب خپلو ليكو ته جذب كړي او دنيا او آخرت يـې ورخـراب كـړي، تاسـو لـه خپـل نفـوذ ، مشرتوب او محبوبيت نه پوره كار واخلئ او هغه كسان چي د اجيري اردو ، امنيت ملي، پـوليسـو او خاصـتاً د اربكيـانو پـه شـكل د ګـوډاګي رژيـم پـه خـدمت كـي دي ؛ دې تـه وهڅـوئ تـر څـو ددوي لـه ليكـو راجـلا او د اسـلامي امـارت پـه پُرامنـه لمـن كـي هوساژوند غوره كړي.



د اسـلامي امـارت پـه اسـتازيتوب زه تاسو تـه ډاډ دركوم چي ستاسو هره نېكه مشوره مـوږ منو او عملي كولو تـه يې د خپـل تـوان مطابق چمتويو ، پـه آخر كي ديوې خبري غوښتنه درځخه كوم او هغـه داچي ستاسو خپـل مجاهد بچيـان ستاسو هرډول مرستي ته ضرورت لري لطفاً يې ترنظر لاندي ولرئ !

والسلام عليكم ورحمة الله

# جیره خور غرب بانگ آزادی

سعیدی

بتاریخ ( ۹–۸–۲۰۱۳ )بمناسبت یاد بود از سالگرد کشته شدن مسعود کنفرانسي در کابل بر گذار گردید در این کنفرانس سیاف بار دیگر بخاطر اعتماد سازی وخوش نگهداشتن باداران غربیش غیظ خودرا در برابر مجاهدین امارت اسلامي چنین بیان داشت نمبر – ۱ گویا ( مجاهدین امارت اسلامي افغانستان مزدور هستند لذا با مزدور مصالحه ومذاکره صورت نگیرد . نمبر ۲ طالبان روی ندارند که با ما بشینند ) قبل از اینکه در ارتباط سخن این فارغ جامع الاظهر و باصطلاح رهبر جهادی تبصره نماییم تمهید ا باید بگویم که یکي معلومات است (انفار میشن) دیگری علم است اما معیار توصیف شخص بعلم هماناعلم نافع که تعلق به اعمال خوب وپسندیده وگفتار مسایل حقه میباشد وعلم نور الهي است تشعشعاتش ظلمت وضلالت را زایل مینماید بناء الله (ج) این حلۀ مبارک را بهر فطرت فروش عطا نمیکند چنانچه محدث معروف حضرت وکیع ( ح ) خطاب به امام شافعي (ح) نموده میفرماید (فان العلم نور من الهي —ونورالله لایعطي لعاصي )یعني برای شقي وگمراه نور الهي که عبارت از علم است داده نمیشود اما جمع آوری معلومات را یک یهودی که در دانشگاه ودر بخش آشنایي ادیان مختلفه که درآن علوم اسلامي نیز داخل است کرده میتواند اما در عقیده وکردارش کدام تفاوت مهمي بوجود نمیاید . حالا بوجدان سلیم رجوع بکنیم شاگردیکه از یک مرکز مشهور علمي فارغ شده ، در فاکولتۀ شریعت بصد ها متعلم درس قرآن وحدیثرایاد داده ودر زمان اشغال روس ها فتوای جهادرا داده در مقام رهبریت وزعامت جهادی قرار گرفته و........امروز جهاد بر حق علیه صلیبي ها را تحریف ، اشغال بواح غربي هارا توجیه ، کشتار ومظالم اشغالگران را اغماز و بفداییان اسلام چنین توهین وجرأت را مینماید ضمیر هر شخص بیدار حکم میکند که اینگونه عناصر فطرت خدا داد خویشرا ضایع نموده در انجام خداوند متعال نور خودرا از قلبش کشیده ودر عوض مهر کتمان حقایق و هرزه سرایي را لگانده . اگر ازاین مدافع اشغال گران غرب پرسیده شود جهادیکه در زمان تجاوز روسها مشروعیت داشت با جهاد امروزی چه تفاوتي دارد ؟ وادارۀ نام نهاد کرزی با ادارۀ کمونست ها و نجیب چه فرقي دارد ؟ روس ها همراه با مزدوران خویش در تطبیق فلان های شوم مسکو و کرملین از هر گونه جنایات علیه ملت مسلمان افغان دریغ نمیکرد وعین روش ننگین را بلکه نسبت بروس ها ستیزه جو تر درنده گان غربي در رأس آن امریکا با معیت فارغین فرهنگ بردگي دساتیر قصر سفید را بالای مردم مظلوم افغان تحمیل مینماید ودر حالیکه در زمان تجاوز روسها یک حکومتي از خلق وپرچمي ها وجود داشت وآنها گفته میتوانست که آمدن روسها مبتني بر یک معاهده است اما تاریخ گواه است که ادارۀ که جناب

شما استاد در یک موقفي قرار دارید اساس وبنیادش بعداز سرازیر شدن غول های درندۀ غربي نهاده شد وشما واندیوالان تان در آن وقت کدام حکومتي نداشتید که با امریکایي ها کدام پروتکول امضا کرده باشید پس بغیرازعنوان اشغال هیچ تعبیری ندارد وعلاوه بر آن همان دوست های صلیبي تان بار بار اعتراف نمودند که ما افغانستان را در تحت اشغال خود آوردیم پس شما بفرمایید کسیکه در زیر چتر یک ادارۀ که غربي ها آنرا تأسیس نموده کار میکند واز معاشات دالر ی آن حظ وبهره میبرد مزدور ،غلام وبلي گوی آن غربي ها نمیباشد؟

دیروز بروطن فروشان وابسته بشرق تافۀ کفر ،الحادوغلامي را میلگاندید امروز در قطار آنها قرار گرفته در سفرۀ غلامي بانگ آزادی را میزنید عجب است یک بام دوهوا این ضمیر مسخ شدۀ شما هست که بر فرزندان اصیل وطن که با بصیرت تام وبا زراکت وهوشیاری وبادرک حقانیت فرهنگ جهاد بفرمان الهي لبیک گفته در سنگر های داغ جهاد روی آوردند وتمام مواقف دنیاوی را زیر پا نموده حتي بپارچه های تن زیبایشان هم التفاتي نکرده بر علیه استکبار جهاني میرزمند گاهي از مرجع فتوای ناتو حکم اعدام مجاهدین را میدهید وگاهي هم خود راآزاده وآزادهگان حقیقي را به القاب مزدور یاد میکنید معلوم شد که در اقلیم جسم و روح شما محبت منصب وموقف ولو بهر قیمتي باشد حلول نموده وحواس وادراک تان را جامد نموده اگر به موضوعي لب میکشایید جز از یاوه سرای ، تحریف حقایق وتوجیه ا باطل دیگر موقفي ندارید نهایتا مصداق ( واشربو ا في قلوبهم العجل ) گردیدید

دیگر در ارتباط جملۀ دیگر این مزدور درجه دو که گویا طالبان روی ندارند که با ما بشینند باید گفته شود که بلي مجاهدین امارت اسلامي که الحمد لله با روحیۀ عالي نظامي امروز قرار دارد ضرورتي دیده نمیشود که با این چنین هیکل هایمسخ شده در میز مذ اکره نشسته در حل معضلۀ افغانستان بحث وگفتگو نماید ونمي خواهد چهره های منحوس شان رامخاطب خود قرار بدهد چرا که اینهادرساختمان پارلمان جز از پوزیشن سازی واختلاس اموال عامه کدام برنامه وموضوعي ندارند چونکه همۀ نقشه ها وپلان ها اعم از سیاسي ، نظامي ،فرهنگي از آنسوی مرز انتقال میابد اینها در برابر آقایان شان جز از جسم های بیجان وهیکل های بیروح چیز دیگری نیستند پس مذاکره با همچون کالبد های خالي وبي حس بالخصوص در رابطه به موضوع وطن ومردم هیچ معنای ندارد آیا کدام اختیار بر نفس هایشان دارند که فرا تر بروند بسر موضوع یک کشور صحبت نمایند ودر سر نوشت یک ملت ابتکاری بخرچ بدهند ملت آگاه ومجاهد پرور افغان بیقین رسیدند که در افغانستان تنها وتنها پلان های ترتیب شدۀ غرب وصلیبي ها تطبیق میشود وکشور شان توسط صلیبي ها بي رحمانه اشغال شده وجهاد مقدس ،دفاع از نوامیس ملي ودفاع ازحریم اسلام را فریضۀ خود میپندارند وچهره های که دیروز بخاطر منافع شان شهر ها وهم شهری مارا بخاک خون یکسان نموده بودند ،بخوبي میشناسند وهیچ وقت به هرزه گویي های آنها فریب خورده پهلوی فرزندان اصیل ومجاهد خود را خالي نمیگذارد (یریدن لیطفؤا نورالله بافواههم والله متم نوره ولو کره الکافرون)

# ذبیح الله " مجاهد"

# ځوښېږي له خپلولس سره

**پوښتنه** : د شهامت مجلې چې د افغانستان د اسلامي امارت په امتیاز خپرېږي، پرلپسې څلوېښتمه ګڼه مې کتله. په ۵۹ ام مخ کې په مقوس لیک لیکلي وو(د ټولو دیني مدارسو لپاره واحد تعلیمي نصاب) ترې لاندې مبارک حدیث:( طلب العلم فریضة.... )او ژباړه یې په پښتو ژبه کښل سوې وه. سریزه هم پښتو وه او په پای کې لیکلي وو(پورتنی نصاب د ابتدایي او متوسطې په شمول په ټول درجو کې د ټولو افغاني دیني مدارسو لپاره واحد نصاب ترتیب شوی او په عملي کولو یې هرمحترم مدرس او طالب العلم مکلف دی. ومن الله التوفیق)

د انصاب د اسلامي امارت د تعلیم او تربیې کمیسیون جوړ کړی و.

مهال ویش له ابتدایي پیل او په درجه حادي عشر(۱۱) (دوره حدیث) پای ته رسیده ،درسي ساعتونه دورځې اووه وو. ډیرکتابونه په عربي ژبه وو چې باید وي.خود عربي ترڅنګ دري (فارسي) هم ځرګند ځای درلود. پیل یې په ابتداییه کې په پنځ کتاب، دوام یې ګلستان، بوستان... او پای یې په درجه تاسعه(۹ ) کې په مثنوي شریف شوی وو.

د تعجب ځای راته داوو چې له پیله تر پایه د پښتو په هکله نه د کوم کتاب نوم لیدل کیده او نه کوم درسي ساعت ورته ځانګړی شوی وو.

زه نه پوهیږم چې د دې لپاره پښتو نه وه چې هغه خو مورنۍ ژبه ده، دهرچا زده ده. خود اخبره دمنلو وړ نه ده، ځکه له ځینو پرته، همدا کسان په پښتو لیکنه کولای نسي او که دغسي وای بیا خو به زموږ پیوندونه ټول د پښتو لیکوالان وو او دعربو اعرابیان به ټول د قرآن کریم په باریکیو پوهیدل. که وایې چې دا نصاب دفارسي ژبو لپاره دی، هم نه منل کیږي، ځکه هغوی هم پښتو ته اړتیا لري او دهغوی به بیا فارسی ته اړتیا نه وه ځکه مورنۍ ژبه یې ده په خپله به یې زده وي. له ما سره دژبې په هکله تعصب نشته خو دا وایم چې په مورنۍ ژبه زده کړه خورا اسانه او دهرچا حق دی.

په هر حال، زه خو په رښتیا ورته حیران سوم ،که په اړه یې ځواب راته وویل شي ډیره به ښه وي.

مزمل حقمل

دپورته ورور پوښتنه او اندیښنه مو د اسلامي امارت د تعلیم او تربیې له کمیسیون د دیني برخې له مسئولینو سره شریکه کړه ، هغو په دې اړه لاندې وضاحت او ځواب را استولی چې زه یې کټ مټ تاسو ته لاندې خپروم.

**ځواب**ـ د تعلیم او تربیې کمیسیون څه موده مخکې د(۱۴۳۳) هجري کال د رجب میاشت او د(۱۳۹۱) لمریز کال د جوزا میاشت او(۲۰۱۲) میلادي کال د جون په میاشت کې د دیني مدارسو لپاره یو متفقه واحد تعلیمي نصاب ترتیب کړ چې د امارت له مقام څخه منظور شو او بیا د شهامت په مجله پرلپسې څلو ښتمه ګڼه کې خپور شو

چې د ټولو اړونده دیني تعلیمي ادارو او ټولو مینه والو ته د خوشحالۍ یو زیری دی چې د اسلامي تعلیماتو د څرنګوالي، توحید او کیفیت د لوړوالي په ډګر کې یو لوی ګام پرمخ واخیستل شو ، د وخت او شرائطو غوښتنو ته مثبت ځواب وویل شو.

یو ورور په دې اړه پوښتنه کړې ، د اسلامي تعلیماتو په دغه نصاب کې یې د ژبې اړخ ته کتنه کړې او بیا یې له فارسي ژبې په اړه ګیله کړېده او ... مونږ د دې تر څنګ چې په دې اړه د فني او مسلکي علماوو او با احساسه اشخاصو نظریاتو او مشورو ته سترګې په لار یو تر څو د نصاب د کیفیت د لوړوالي او په مسلکي توګه د نصاب دلاښه والي په اړه زمونږ سره مرسته وکړي خوله خپلو دوستانو څخه داهیله هم لرو چې د مختلفو نصابونو خپل معیارونه ، مشخصات او ځانګړتیاوې هم په نظر کې ولري او په دې برخه کې دپوره معلوماتو په رڼا کې خپل نظر څرګند کړي، مونږ نو موړي کس ته د نصاب دځینو مشخصاتو په اړه یو څو لنډې نکتې او یوه ګیله مخ ته ایږدو هیله ده د انصاف له مخې قضاوت پرې وکړي.

**معلومات مو دادي**:

۱: لکه څنګه چې تاسې پخپله هم پوهیږئ چې دغه نصاب د اسلامي او دیني تعلیماتو لپاره جوړ شوې دی ، د اسلامي او دیني تعلیماتو بنسټ او بنیاد د قران کریم او حدیث نبوي «صلی الله علیه وسلم» په زده کړه او دهغو پر لفظي او معنوي مزایاوو باندې پر پوهیدلو ولاړ دی او دغه دواړه (قرانکریم او حدیث نبوي«صلی الله علیه وسلم» ) په عربي ژبه دي او عربي ژبه د فصاحت او بلاغت په لحاظ د بې شمیره حکمتونو څخه ډکه ده چې د دغه نصاب زیاتره فنون لکه صرف ، نحو ، معاني ، بیان ، بدیع او ... د عربي ژبې د ګرامر، فصاحت او بلاغت او نورو ارزښتونو دزده کړې لپاره ځای شوي دي نو آیا ضروري نه ده چې د عربي ژبې دزده کړې لپاره د دا سې موثرو وسائلو له لارې استفاده وشي؟

۲ : دغه نصاب کوم نوی جوړ شوی نصاب نه دی بلکه دفنونو په لحاظ زموږ د اسلامي تاریخ یوه ډیره پخوانۍ لړۍ ده چې زموږ د نیکو اسلافو څخه راپاته ده اوس صرف دفنونو او کتابونو په لحاظ درجه بندۍ پکې شوې ده خو له پخوا څخه تراوسه داډول تبصره موږ نده اوریدلې ، نه پوهیږو چې اوس د دې ضرورت څنګه احساس شو؟

۳: تر او سه د ديني او اسلامي تعليماتو د نصاب په چوکاټ کې د پښتو د اسې مشکل او سخت کتاب نه ده راغلی چې درسي ويلو ته ضرورت ولري او که موجود وای نو به خامخا تدريس کيدلای.

۴: په دغه نصاب کې ځينې کتابونه چې دوخت له غوښتنو سره سم داخل شوي او پرته له عربي په نورو ژبو وولکه (اردو ) هغه ټول موږ په پښتو يا فارسي سره ترجمه کړي او چاپ کړي او د مدرسو په واک کې مو ورکړي دي

۵: د فارسي ژبې کتابونو د موجوديت په اړه موږ دا وايو چې د فارسي ژبې کتابونه لکه (پنج کتاب ، گلستان ، بوستان او مثنوي ) دا ديوه علمي فن په حيث لکه ديني احکام ، ادبيات ، تصوف او تاريخي واقعيتونو په توگه راغلي دي نه ديوې ژبې په توگه.

۶: د پښتو بلکې دهرې ضروري ژبې د زده کړې لپاره موږ ځانگړې د عصري تعليماتو اداري له ابتدائي يعنی کليوالي کچې څخه نيولې د پوهنتون او مسلکي تعليمي ادارو تر کچې پورې لرو چې په هغو کې دهرې ضروري ژبې خصوصاً د پښتو ژبې د گرامر ، لغت ، اصل او قوانينو د زده کړې پوره انتظام او اهتمام شوی دی چې په مسلکي لحاظ دهغې په زده کړه سره يو ځوک د ژبې متخصص او ليکوال جوړيدای شي ، مينه وال کولای شي د دغو ادارو له لارې چې هغه هم زموږ د تعليمي لړۍ يو جزء لاينفک دی خپله مينه ماته کړي او خپلې ژبې ته خدمت وکړي ، چې مونږ پخپله د کليوالي مدرسو لپاره د دريو کلنو يو نصاب په پښتو کې ترتيب کړی او غواړو چې د فارسي ژبې لپاره يې فارسي ته هم ترجمه کړو.

**او گيله مو داده :**

دغه د ژبې مينه وال ولې د عصري تعليمي ادارو نصابونو ته متوجه نه دي چې زموږ د دين ، وطن او فرهنگ د ښمنانو پرته له نورو خرافاتو او لاس وهنو يو ازې د ژبې په لحاظ څومره تيری کړی او د نصاب زده کړه او تعليم يې په ځينو لوړو ادارو کې په پردۍ ژبه لازمي گرزولی او نور هم کوښښ روان د ه تر څو ټولې عصري اداري د خپلو ژبو تر اثر لاندې راولي او هرڅه په پردۍ ژبه ولوستل شي چې دا نه کوم ديني ضرورت دی او نه هم فني او مسلکي اړتيا .

آيا نه گورئ ! چې په ځوانانو او د عصري تعليمي ادارو په شاگردانو کې يې د بهرنيو ژبو څومره د شوق او رغبت فضا رامنځ ته کړې ده؟ ترڅو د پرديو ژبو د زده کړې لپاره په رسمي او شخصي کورسونو کې د خپل وس تر اندازې پورې فيس او اجوره ورکوي، تر څو پردۍ ژبه زده کړي چې د نصاب په زده کړه کې ستونزه ونه لري ، نو اوس ايا داخبره پرځای نه ده چې دهغو ترځنگ تر ممکن حده کوښښ وشي چې د عربي ژبې د زده کړې لپاره هم زمينه برابره شي تر څو زموږ ځوانان او راتلونکی نسل د قران کريم د لفظي اعجاز او د فصاحت او بلاغت له کچې خبر شي او په ديني عقايدو کې يې نور قوت راپيدا شي ، د خپل دين په ژپه پوه شي ، د خپل پيغمبر په خبره مخامخ پوه شي ، هيله ده ټول مسلمانان په دغه خدمت کې زموږ سره شريک شي.

والسلام

# دعوت او ارشاد

## د ۲۰۱۳ز، د دعوت ، او ارشاد د (سپتمبر) د میاشتې تفصیلي راپور

د افغانستان اسلامي امارت د دعوت ،ارشاد ،جلب او جذب کميسيون په هڅو ،د ځـآيې مجاهدينو په ملاتړ د تېرې څېر د سپتمبر په مياشت کې هم د هيواد په لراو بر کې د کابل د شوړيدلي رژيم د بيلا بيلو ارګانو نو څخه ۸۷۸ تنه با احساسه هيوادوال راووتل او د اسلامي امارت سره يوځاى شول.

دوى مختلفه النوع سلاوي او وسايط مجاهدينو ته وسپارل او ژمنه يې وکړه چې نور به د خپل دولس ترڅنګ د ديرې او د يرغلګرو صليبيانو او د هغوى د اجيررژيم پرضد يې به خپله اسلامي او ملي وجيبه جهاد کوي او د اسلامي امارت د مجاهدينو پوره ملاتړ به کوي.

د اسلامي امارت مجاهدينو په تېره د دعوت او ارشاد ،جلب او جذب کميسيون مشر تابه د دوى همدا نيک اقدام ډيرو ستايه ،جايزې او انعامونه يې ورکړل ،د سر او مال د حفاظت تضمين يې ورکړ او د لوى الله څخه يې د دارينو کاميابي او سرلوړي ورته وغوښتل.

تفصيل يې په لاندې ډول دى:

د سپتمبر په ۱ نېټه د پروان ولايت په شينوارو ولسوالۍ کې ۲ تنه پوليس د کونړ په چپه دره کې ۲ تنه عسکر ،د پکتيا په خيرکوټ ولسوالۍ ۴ تنه اربکيان او د ننګرهار په حصارک ۸ تنه عسکر او د پکتيا په زرمت ولسوالۍ کې ۱ تن عسکر، د کندهار ولايت په ارغنداب ولسوالي کې ۲ تنه اربکيان او د ميدان وردګ ولايت په نرخ ولسوالۍ ۲ تنه عسکر د مجاهدينو سره يوځاى شول.

د سپتمبر په ۲ نېټه د پروان ولايت په شينوارو ولسوالۍ کې ۱ تن اربکي او د ننګرهار په مهمند دره کې ۳ تنه عسکر او پکتيا په ځاځي اريوب کې ۳ تنه اربکيان ،د فارياب ولايت په قيصار ولسوالۍ ۲ تنه ،او د کندهار ولايت په معروف ولسوالۍ کې ۱ تن له مجاهدينو سره يوځاى شول.

د سپتمبر په ۳ نېټه دپروان ولایت په شینوارو ولسوالي ۱تن عسکر ،دلغمان په علیشنګ کي ۵تنه اربکیان ،دکاپیساولایت به نجراب کي ۲اربکیان اودپکیتاپه احمد ابادکي ۱تن اربکی ،دبادغیس ولایت داب قمری ولسوالی کي ۱تن ،اودکندهارولایت کي ۵تنه عسکر له مجاهدینو سره یوځای شول.

د سپتمبر په ۴ نېټه دفراه ولایت دبالابلوک ولسوالي کي ۱تن اربکی، دپکتیاپه سیدکرم کي ۱تن عسکر اودپروان ولایت په شینوارو ولسوالۍ ۲ تنه اربکیان له مجاهدینو سره یوځای شول.

د سپتمبر په مختلفو نېټو دکونړ مختلفو ولسوالیو او کلیو نه د اجیرې اوردو پولیسواو اربکیوله لیکوڅخه ۲۸۵ تنه کارکونکي دکابل دمنفوررژیم څخه رابیل اوداسلامي امارت له مجاهدینو سره یوځاي شول.

د سپتمبر په ۵ نېټه دروزګان ولایت ددهراود ولسوالي کي ۱۸تنه عسکرله فاسدی اداری راجلاشول دپکتیکاپه اورمهای کې ۲ سرحدي پولیس اودننګرهارپه حصارک کي ۷پولیس او۳تنه اربکیان دقوماندان سهېل زامن له مجاهدینوسره یوځای شول.

د سپتمبرپر۲مه نیته دکندهار ولایت کی ۳تنه عسکر ،دننګرهارولایت په سپین غر ولسوالۍ کي ۴۰ تنه پولیس او عسکر چي دکلونو را هیسې یې په مختلفو ولایاتو کې د کابل اداري په امنیتي ارګانونو کې دنده اجرا کوله داسلامی امارت دمجاهدینو سره یوځای شول دغه رازدغزنی ولایت دده‌یک، قرباغ، خوګیانو ،رشیدانو اوګیلان په ولسوالیو کی ۳۰تنه عسکردکابل له شړیدلی اداري څخه راجلا اوداسلامی امارت ملګری شول. همدارنګه دهلمند دموسی قلعه ولسوالی کي قومي مشرمحمدجان خان چي داربکیانومشر وو دحقائقو په درک کولو سره دفاسدی اداری له صفه راجلاشو اودامارت له عفوی مستفید شو.

د سپتمبر په ۷ نېټه دهرات دشینډنډ په ولسوالي کي ۲تنه اربکیان ،دفراه دبلابلوک ولسوالی کي۲تنه اربکیان ،دروزګان ولایت دخاص روزګان ولسوالی کي ۸تنه پولیس ،دهلمند ولایت دسنګین ولسوالی کي ۲تنه عسکر دکابل اداري له لیکورااوتل ،دننګرهار ولایت په اچین ولسوالۍ ۱تن عسکراو دهرات ولایت دشینډنډ په ولسوالی کي ۱تن عسکر له مجاهدینو سره یوځای شو.

د سپتمبر په ۸نېټه دپکتیاپه جاني خیل کې ۱تن عسکر ،دکندهار ولایت دمعروف ولسوالی کي ۱تن عسکراودکندوزولایت په علي ابادکې ۳تنه اربکیان له مجاهدینوسره یوځای شول.

د سپتمبر په ۹ نېټه ددايکنډی ولايت دګزاب په ولسوالي کي او دبيری ،شيران، تميزان، قوخوراو داسي نورو کليو کي ۱۲۹کسان له فاسد حکومت څخه راووتل اودا سلامی امارت ملګری شول. دغ رازدپکتيکا ولايت دجاني خيل ولسوالۍ کي داردو ۲تنه عسکر ،دهلمند ولايت دسنګين ولسوالي کي ۲تنه عسکراو پکتيامرکزګرديزته نژدې۲تنه عسکردمجاهدينو سره يوځای شول.

دسپټمبرپر۱۰مه ددايکنډی ولايت دګزاب ولسوالی کي ۱تن عسکرله مجاهدينو سره يوځای شو.

د سپتمبر په۱۱ نېټه دروزګان ولايت مرکز ترينکوټ په بيلابيلو کليو۱۵تنه اربکيان ، دهرات ولايت دپښتون زرغون په ولسوالۍ کي ۹تنه اربکيان له فاسدی اداری څخه راجلاشول ،دپکتيکا ولايت په يحی خيل ولسوالی۴تنه اربکيان،دتخار ولايت اشکمش کي ۱تن عسکر، دروزګان ولايت دچهارچينو ولسوالی کي ۲تنه عسکر له مجاهدينو سره يوځای شول.

د سپتمبر په ۱۲ نېټه دبلخ ولايت په البرز ولسوالی۴تنه اربکيان ،دهرات ولايت دادرسکن په ولسوالي کي ۲تنه عسکر او دکندهار ولايت دخاکريزولسوالی کي ۱تن اربکی له مجاهدينو سره ملګري شول.

د سپتمبر په ۱۳نېټه دبغلان په مختلفوولسواليوکي ۲۷تنه داردواوپوليسوعسکر،دپکتيکا ولايت په يحی خيل ولسوالۍ کې۲تنه اربکيان ، دهلمند ولايت دباغران ولسوالي کي ۷تنه اربکيان او دګرشک ولسوالي کي۲تنه عسکر داسلامي امارت له مجاهدينو سره يوځای شول.

دسپټمبرپر۱۴مه دفراه دبالابلوک ولسوالي کي ۱عسکر،او دهلمند ولايت دزميندا ورکي ۱تن عسکرله مجاهدينو سره يوځای شو.

د سپتمبر په ۱۲ نېټه دلغمان ولايت په دولت شاه ولسوالۍ کي ۴تنه اربکيان ،دپکتيا ولايت په احمداباد ولسوالۍ کي ۱تن کماندو عسکر اودغزنی ولايت دګيلان ولسوالي کي ۱تن عسکر له مجاهدينو سره يوځای شو .

د سپتمبر په ۱۷ نېټه دفارياب ولايت ددولت اباد په اولسوالي کي ۵تنه عسکر،اودپکتيکا جاني خيل کې دخوشامنداامنيه قومندان عبدالرحمن سيلاب له ۵عسکروسره دمجاهدينو سره يوځای شو .

د سپتمبر په ۱۸ نېټه دننگرهار ولایت په حصارک ولسوالۍ ۳تنه عسکر، او دهلمند دواشیر په ولسوالي کي **۵**تنه پولیس له مجاهدینو سره یوځای شول.

د سپتمبر په ۱۹ نېټه دننگرهار ولایت په خوګیانو ولسوالۍ ۱تن اربکی او دپکیتا په ثمکنو کي **۵**تنه عسکر، دلغمان ولایت په علیشنگ ولسوالۍ کي **۱۵**تنه عسکر له مجاهدینو سره یوځای شول.

د سپتمبر په ۲۱ نېټه دهلمندولایت دواشیر ولسوالی کي ۳تنه او دګرشک ولسوالی کي ۱تن عسکر، دمیدان وردګ ولایت په چک، جغتو او سید اباد کي ۳۸ تنه حکومتي کارمندان ( اربکیان، اوردو، پولس، او په اصطلاح ملي امنیت) له فاسدی اداري راجلا اود اسلامي امارت له مجاهدینو سره ملګری شول. دغه رنګه پرهمدې نیټه دننګرهارولایت په چپرهارکې دانتخاباتو محلي رئیسان(عوض اورحمت الله ) له مجاهدینو سره یوځای شول.

د سپتمبر پر مختلفو نیټو د جوزجان ولایت په خمیاب، درزاب، فیض اباد، خانقاه او آقچه ولسوالیو کې ۲۷ تنه عسکر د اسلامي امارت له مجاهدینو سره یوځای شول. مجاهدینو دیادو عسکرو تود هرکلی کړی او په سیمه کې د ارام او سېدو ډاډ یې ورکړی او عسکرو له مجاهدینو سره وعده کړې چې نور به په ګوډاګی اداري کې دکار کولو په ځای له مجاهدینو سره ورونو سره اوږه په اوږه د دین او وطن دفاع کوي.

د سپتمبر پر **۲۳**مه د روزګان ولایت دچوری ولسوالي کي ۱تن عسکر د مجاهدینو سره یوځای شو.

د سپتمبر پر **۲۴**مه د بادغس ولایت دمرغاب په لسوالی کي ۲تنه عسکر دمجاهدینو سره ملګري شول.

د سپتمبر پر **۲۵**مه دهلمند دلشکر ګاه ښار او سیدونکي ۲ تنه عسکر له فاسدی اداري راجلا او د اسلامی امارت ملګري شول.

د اسلامي امارت مجاهدینو ته سپارل شوي وسلې او وسایط چي تفصیل یې په لاندي ډول دی:

۱ټانګ، ۱۳۴میله کلاشینکوفونه، ۱۱میله ثقیل \ پیکا، ۸راکټ ارپي جي، ۲تکتیر، ۴هوانونه ۲سل ډزي، ۱غټه مخابره، ۲وړې مخابرې، ۱۵۰۰۰د ثقیل مرمۍ، ۲۰۰۰د کلاشینکوف مرمۍ، **۵**چانټې، ۱توپانچه موټر او ۱موترسایکل

پیوسته به گذشته.......

# ام الفضل (لبابه بنت حارث)

# مادر دانشمند امت و امام تفسیر

سعادت و خوشبختی ام الفضل تنها در این حد نبوده و بس، بلکه سعادت و شادمانی‌اش با پسر محبوبش «عبدالله بن عباس» مضاعف شد. پسری که در شعب ابی‌طالب موقع محاصره‌ای که قریش بر بنی‌هاشم تحمیل کرده بود، به دنیا آورد. ـ این امر سه سال قبل از هجرت بود ـ ام الفضل، نبوغ پسرش و تبحر و تفوقش در علوم و دانش‌های دینی را می‌دید، و آن مژده عظیمی را به یاد آورد که پیامبرص موقعی که ام الفضل، عبدالله را در شکم داشت، به او داده بود.

از ابن عباس روایت شده است که می‌گوید: ام الفضل بنت حارث برای من حدیثی نقل کرد و گفت: در حالی که من عبور می‌کردم و پیامبرص در اتاق بود، فرمود: «ای ام الفضل!». گفتم: بله، ای رسول خدا. فرمود: «تو به پسری حامله می‌شوی». گفتم: چگونه می‌شود در حالی که قریش سوگند خورده‌اند که زنان، فرزندی را به دنیا نمی‌آورند؟ آن حضرت فرمود: «آنچه به تو گفتم، همان می‌شود. هرگاه وضع حمل کردی، او را نزد من بیاور». وقتی او را وضع حمل کردم، وی را نزد پیامبرص بردم. پیامبرص او را عبدالله نام نهاد و آب دهانش را به کام او مالید و فرمود: «او را ببر، در آینده او را انسانی زیرک و باهوش خواهی یافت». نزد عباس رفتم و این خبر را به او دادم. او لبخندی زد و سپس نزد پیامبرص آمد. عباس، مردی زیبا و بلندقد بود. وقتی پیامبرص او را دید، به سویش رفت و پیشانی‌اش را بوسه زد و او را در سمت راست خود نشاند. سپس فرمود: «این فرد، عموی من است، هرکس خواست، عمویش را پدر خود بداند». عباس گفت: ای رسول خدا، چرا چنین می‌گوئی؟ آن حضرت فرمود: «چرا این را نگویم در حالی که تو عموی من، و باقیمانده پدران من هستی. و عمو به منزله پدر است.«

### نائل آمدن به دعای پیامبرص برایش

ابن عباس در حدود سی ماه، همراه و همنشین پیامبرص بود. او انسانی خوش چهره، زیبا، بلندقد، باهیبت، خردمند، وارسته و از افراد پخته و کامل بود.

از ابن عباس روایت شده است که می‌گوید: پیامبرص مرا به سینه خود چسباند و فرمود: «خدایا، حکمت را به او بیاموز.« در روایتی دیگر آمده که ابن عباس می‌گوید: «پیامبرص دستی بر سرم کشید و از خداوند خواست که حکمت را به من بیاموزد.«

از ابن عباس روایت شده است که رسول خدا ص در خانه میمونه بود. من آب وضو را در شب برای پیامبر ص آماده کردم. ابن عباس می گوید: آنگاه میمونه گفت: ای رسول خدا، عبدالله بن عباس، این آب را برای تو آماده کرده است. آن حضرت فرمود: «خدایا، فهم و درک دین را به او عطا کن و علم تأویل را به او بیاموز.« هم‌چنین از ابن عباس روایت شده است که می گوید: رسول خدا ص دوبار برای من دعا کرد که حکمت به من داده شود.

پیامبر ص وفات یافت و ابن عباس تنها سیزده سال داشت. او دانشمند امت بود و به خاطر فراوانی علمش، بحر علم نامیده شد. و عمر و عثمان او را همراه اهل بدر به جلسه شورا دعوت می‌کردند تا نظر خودش را اظهار نماید. او تا موقع وفاتش در زمان خلافت عمر و عثمان، فتوا می‌داد. این چنین خداوند سینه مادرش را شادمان گرداند وقتی می‌دید که قدر و منزلت و جایگاه او روز به روز، بالا می‌رود.

## جبران مافات

پس از آن که عباس، اسلامش را آشکار کرد، ملازم و همراه پیامبر ص بود و هرگز از او جدا نمی‌شد. در جنگ‌ها و موقعیت‌های حساس همراه پیامبر ص حضور داشت و آرزو می‌کرد که جان و مال و تمام دارائی‌اش را فدای آن حضرت کند.

در روز حُنین، وقتی مردم شکست خوردند و از اطراف پیامبر ص پراکنده شدند، عباس ملازم و همراه پیامبر ص بود و از او جدا نمی‌شد.

عباس رضي الله عنه می‌گوید: وقتی مسلمانان و کفار با هم برخورد کردند، مسلمانان عقب‌نشینی کردند. و رسول الله ص استرش را در جلو کفار می‌دواند و من افسار استر رسول الله ص را می‌گرفتم و آن را می کشیدم تا سرعت نگیرد. و ابو سفیان شتر آن حضرت را گرفته بود. آن‌گاه رسول خدا ص فرمود: «ای عباس! اصحاب بیعت رضوان را صدا بزن .( )« عباس- که مردی بلند آواز بود- می‌گوید :با صدای بلند گفتم: اصحاب بیعت رضوان کجایند؟ عباس گفت: به خدا قسم، وقتی صدایم را شنیدند، دلم بر ایشان سوخت.«

## زیرکی و هوشیاری

ام الفضل زیباترین روزهای زندگی‌اش را گذراند و از سنت و بردباری و اخلاق و علم پیامبر ص برمی‌گرفت حتی احادیثی چند را از آن حضرت روایت کرده است .بلکه دو پسرش، عبدالله و تمّام، و انس بن مالک و عبدالله بن حارث و دیگران از او حدیث را روایت کرده‌اند.

گذشته از آن، خداوند او را مورد اکرام قرار داد؛ او و شوهرش عباس همراه پیامبر ص به حجه‌الوداع رفتند. و در روز عرفه موضع‌گیری عظیمی داشت.

از عمیر برده آزاد شده عبدالله بن عباس، از ام الفضل بنت حارث روایت شده است که در روز عرفه چند نفر در نزد او (ام الفضل) راجع به روزه رسول خدا ص با هم نزاع داشتند. عده‌ای گفتند: آن حضرت، روزه است و عده دیگری گفتند: او روزه نیست. پس من هم لیوان شیری را برای آن حضرت فرستادم در حالی که او در عرفه روی شترش بود. پس آن شیر را نوشید.

## فراقی دردناک

در حالی که سعادت ایمانی بر روی زندگی ام الفضل پرواز می‌کرد، ناگهان دید که ابر غم و اندوه بر آسمان مدینه خیمه‌زده است. رسول الله ص وفات یافت و ام الفضل بسیار اندوهگین و ناراحت شد تا جائی که نزدیک بود دلش پاره شود، اما صبر و تحمل پیشه کرد تا به ثواب و پاداش صبرکنندگان نائل آید.

پس از وفات پیامبر محبوب ص، همچنان عبادتگذار، زاهد، شب‌زنده‌دار و روزه‌دار ماند و بلکه به دنبال علم و دانش دینی می‌رفت و در راه دعوت به سوی خدا بسیار تلاش می‌کرد.

ابوبکر و عمر و عثمان قدر و منزلت و جایگاه او را نزد رسول الله ص می‌دانستند و در نهایت احترام و ادب با وی برخورد می‌کردند. او از سابقین به سوی اسلام بود و همه چیزش را جهت نصرت و یاری دین خدا، بخشید.

## اینک زمان رحلت فرا رسیده

پس از آن سفر طولانی از بذل و بخشش به خاطر دین خدا، ام الفضلک بر بستر مرگ خوابید پس از آنکه چیزهای باارزشی را تقدیم کرد. برای او بس است که »دانشمند امت« عبدالله بن عباس را تحویل امت اسلام داد. او در روز قیامت در ترازوی نیکی‌های مادرش قرار خواهد گرفت، چون آن حضرت ص فرموده‌اند: «إذا مات الإنسان انقطع عمله إلاّ من ثلاث: صدقة جارية أو علم ينتفع به أو ولد صالح يدعو له»: «هرگاه انسان بمیرد، عملش از این دنیا قطع می‌شود به جز در سه چیز که در آنها تا روز قیامت، عملش همچنان باقی می‌ماند. این سه چیز عبارتند از: صدقه جاریه، علم مفید و سودمند، و فرزند صالح که برای او دعای خیر می‌کند.«

ام الفضل رحلت کرد تا تمام خیر و نیکی و فضل و نعمت‌های جاوید را نزد پروردگارش در بهشت و قرارگاه رحمتش را بیابد.

خداوند از او راضی باد و او را راضی و خشنود گرداند و بهشت برین را جایگاهش گرداند!

از کتاب: بانوان نمونه عصر پیامبر ص

# جنګي جنايتونه (سټمبر)

سید سعید

دراون(۲۰۱۳ز)کال د سپتمبرپرلومړۍ نیټه داخلي عسکرود بغلان ولایت په درمبک کلي کې شپږ تنه ماشومان چې عمرونه یې د ۹ او ۱۴ کلو ترمنځ وو شهیدان کړي اویو هلک و نجلۍ یې ټپي کړې ده ،دعیني شاهدانو په وینا یادشوي کوچنیان وروسته له هغه دپولیسو دبرید ښکارشول چې ددوی په امریې په سیند کې له لامبوو هلولاس وانخیست.

د سپتمبرپرلومړۍ نیټه دفراه ولایت د بالابلوک ولسوالۍ دشیوان په سیمه کې دنظم عامه پولیسو ددرنو وسلو په ډزو کې یوماشوم (عین الدین )شهیداویوه ښځه ژوبله شوې ده.

د سپتمبرپر۴مه د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په منزلاري کلي دداخلي عسکرو دډیسي توپ دلګیدو له امله دوه تنه ملکي وګړي شهیدان شوي دي.

د سپتمبرپر۵مه دزابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ په جعفرو کې ګډوځواکونو دعملیاتو پرمهال یوعام کلیوال (عبدالولي) شهید کړی اویو بل تن یې زخمي کړی ،همدارازددغوعملیاتو په دوهمه ورځ یې دوه تنه نورولسي وګړي (خان محمد او محمد ولي) هم شهیدان کړي دي .

د سپتمبرپر۶مه د زابل ولایت دمرکز (قلات) بازار په څو تجارتي سرایونو کورنیو عسکرو د غلام سخي روغ لیوني په مشري چاپه ووهله ،لس تنه تجاران یې بندیان کړي اتلس لکه افغانۍ او نورشیان یې هم له خلګو وړي دي.

د سپتمبرپر۶مه اشغالګرو دمیدان وردګ ولایت د جغتو ولسوالۍ په صالح خېل سیمه کې چاپه وهلې ،دکورنو ترتلاشي کولو او خلګو ته دمالي زیانونو اړولو وروسته یې شپږ تنه ملکي وګړي بې له څه تورپوري کولو له ځان سره بندیان کړي دي.

د سپتمبرپر۷مه د کونړ ولایت په وټه پور ولسوالۍ کې دیرغلګرو ځواکونو په ډرون حمله کې شپاړس تنه ولسي هیوادوال شهیدان شوي ،په شهیدانو کې اوه ماشومان ،پنځه ښځې او څلورنارینه

شامل دي.دغه پېښه هغه مهال رامنځته شوه چې دولسي خلګو د سورلۍ موټر د یادي شوي ولسوالۍ څخه وګمبیر سیمې ته په لاروو چې بې پیلوته الوتکې برید پرې وکړ او ټول سپاره کسان پکې له منځه ولاړل.دکونړولایتي چارواکې هم د یرغلګرو په دغه برید کې ولسي خلګو ته یاد شوي تلفات تائیدوي .خو یرغلګر د تل په شان په همدې حمله کې هم دمخالفوو سله والو دوژل کید لو دعوه کوي.

د سپټمبرپر۸مه دکندهارولایت د میوندولسوالۍ په اشخاباد سیمه کې داخلي عسکرو دخپلي قرارګاه څخه ګڼ شمیر دهاوان مرمۍ توغولي چې له امله یې څلورماشومان او یوه ښځه شهیده شوې او پنځه کوچنیان ژوبل شوي دي.

د سپټمبرپر۸مه یرغلګرو دهلمند ولایت د باباجي ولسوالۍ په لوی مانده سیمه کې د چاپې پر مهال درې تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

د سپټمبرپر۸مه اشغالګروعسکرو دغزني ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په ولي کلاکي د تلاشیو وروسته څلورتنه ملکي وګړي بندیان کړي دي.

د سپټمبرپر۹مه دد هلمند ولایت د خانیشن ولسوالۍ په قلعه نو سیمه کې پولیسو او اربکیانو دولس تنه ملکي هیوادوال بندیان کړي دي.

د سپتمبرپر۹مه دفراه ولایت د بالابلوک ولسوالۍ دشیوان د سپین مسجد په سیمه کې دداخلي عسکرو په ډزو کې ملاامام (مولوي عبد الرحیم ) چې دهرات ولایت دشینډنډ ولسوالۍ او سیدونکی ؤ شهید شوی دی.

د سپتمبرپر۱۰مه دکاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په غین دره کې یرغلګروځواکونو د استوګني پر سیمه بمبارکړی چې له امله یې یو سپین ږیری شهید شوی او څلورتنه نورولسي وګړي ټپیان شوي دي

د سپټمبرپر۱۲مه دغزني ولایت د شلګرولسوالۍ داتل کلي دوه تنه ولسي هیوادوال (صفی الله او عبد الله )چې څوورځې مخکې اربکیانو له ځان سره بېولي وو جسدونه یې په یو باغ کې وموندل شول ،ددوی له اجسادو داسې معلومیده چې لومړی شکنجه شوي او بیا شهیدان شوي وي.

د سپټمبرپر۱۳مه اشغالګرو دهلمند ولایت د باباجي ولسوالۍ دکوپکي په سیمه کې د چاپې په ترڅ کې درې تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

د سپټمبرپر۱۴مه دهلمند ولایت د مارجې ولسوالۍ په عباد الله قلف سیمه کې بې پیلوټه الوتکې یو ملکي سړی چې پر موټرسایکل سپور ؤ شهید کړی دی.

دسپتمبرپر۱۴مه یرغلگرو دارزگان ولایت د دهراودولسوالۍ دغاړو په سیمه کې دچاپې په ترخ کې دوه تنه کوچیان ژوبل کړي او یوتن یې شهید کړی دی.

دسپتمبرپر۱۴مه د کندزولایت د چهاردرې ولسوالۍ په نواباد سیمه کې یرغلگرو ځواکونو دشپنیو عملیاتو په لړکې خلگوته دډیرومالي زیانونو اړولو وروسته شپاړس تنه ملکي وگړي دبندیانو په توگه له ځان سره وړي دي.

دسپتمبرپر۱۵مه رسنیو خبرورکړچې دکندز ولایت په دشت ارچي او امام صاحب ولسوالیو کې داخلي عسکرو او اربکیانو دیولوی برید په ترخ کې دولسي خلگوله کورنو څخه موټرسایکلونه ،مختلف قیمتي توکي او څاروي له ځان سره وړي ،هیره دې نه وي چې ملکي خلگوته یاد شوي زیانونه هغه مهال واوښتل چې دکابل حکومت دکندز دشت ارچي او امام صاحب په ولسوالیو کې دطالبانو پر ضد د عملیاتو پیل اعلان کړ.

دسپتمبرپر۱۵مه دزابل ولایت د شاجوي ولسوالۍ  دشبار دچمبرانو په سیمه کې نیواکگرو عسکرو دوه تنه ولسي افغانان له کوره ایستلي وروسته چې خلگ دمعلوماتو لپاره پسې ورغلل یرغلگرو همدا دوه کسان په دغه سیمه کې دانگورو په یو باغ کې شهیدان کړي ؤ.

دسپتمبرپر۱۲مه دغورولایت د تیوري ولسوالۍ په بازار کې اربکیانو دوه تنه ملکي وگړي شهیدان کړي دي.

دسپتمبرپر۱۲مه دکاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه او غین دره کې دکورنیو عسکرو په هوایي ډزو کې دوه تنه ولسي هیوادوال شهیدان شوي ،څلور ښځې او دوه نارینه پکې ژوبل شوي دي.

دسپتمبرپر۱۷مه یرغلگرود بلخ ولایت د البرز ولسوالۍ په۴ساري سیمه کې دچاپې پر مهال پنځه تنه ولسي وگړي له ځان سره دبندیانو په توگه وړي دي.

دسپتمبرپر۱۸مه دفراه ولایت د پشتکوه ولسوالۍ مرکزته نږدې دولسوالۍ استخباراتي عسکرویو ملکي هیوادوال (لعل محمد )ترنیولو وروسته شهید کړی دی.

دسپتمبرپر۲۰مه د پکتیکا ولایت داومنه ولسوالۍ په مرکزي سیمه کې داخلي عسکرو دخلگو پرکورونو دچاپې پروخت لس کسه ولسي وگړي بندیان کړي دي.

دسپتمبرپر۲۰مه دمیدان وردگ ولایت د سیداباد ولسوالۍ په اونخي دره کې اشغالگرو عسکرو یوتن محصل (ضیاءالرحمن )چې دسید جمال الدین دښوونځي داتم ټولگي زده کونکی ؤ شهید کړی دی.

د سپتمبر پر **۲۱** مـه د زابـل ولایـت د شـاجوی ولسـوالۍ پـه سـریزو کلي کـي د یرغلګرو او داخلـي عسکرو په چاپه کي دوه ملکي هیـوادوال شهیدان او دوه تنه ژوبل شول. د دې پیښي په دوهمه ورځ د اشــغالګرو د همدې عمــل پــه عکــس العمــل کــي پــه زرهــا و وخلګو د یرغلګرو او داخلــي




عسکرو د کړنو پر ضـد د همدې ولسـوالۍ پـه بـازار کي مظـاهره وکـړه ،لاریـون کونکو اخطار ورکړ کـه بیا هم داسې څـه تکرار شي د حکومت پر ضد به پـاڅون وکړي او پـه یو مخیزه توګـه بـه لـه طالبانو سره ودریږي.

د سپتمبر پر **۲۲** مـه نیوا کګرو عسـکرو د پروان ولایت د کوه صافي ولسوالۍ پـه ښر کي کلي کي یو عام سړی شهید کړی دی.

د سپتمبر د **۲۴** مي په ماښام یرغلګرو د هلمند ولایت د ګرشک ولسوالۍ د حیدراباد په محمدزو کلي کي د چاپې په مهال څلور تنه ولسي وګړي له ځان سره د بندیانو په توګه وړي دي.

د سپتمبر پر **۲۴** مـه اربکیانو د قوماندان اختر پـه مشري د کندوز ولایت د دشت ارچي ولسوالۍ په مختلفو سیمو کي پنځه تنه ملکي وګړي په دې تور چي خپلوان یې له طالبانو سره دي بندیان کړي دي.

د سپتمبر پر **۲۵** مه یرغلګرو او داخلي ملګرو یې د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ پـه لاچپور سـیمه بانـدي چاپـه وهلې ،دوی د چاپي پر مهـال اتیـا (۸۰) تنـه ولسـي هیـوادوال لـه خپلو کورنو څخـه رایستلي ،وهلي او ټوله ورځ یې د کلي په جومات کي لاسـته تړلـي بنـدیان کړي وو ،د سیمه ییزو خلګو پـه وینا په دغه چاپه کي اشغالګرو او کورنیو عسـکرو د دوی لـه کورونو څخـه نغـدي پیسـې ،زر او نور قیمتي شیان هم وړي دي.

د سپتمبر پر **۲۵** مه د کندز ولایت مرکز اړوند د حضرت سلطان د سیمي دګاړو په کلي باندې د اربکیانو په چپاووکي دوه تنه ولسي وګړي شهیدان شوي او دري تنه ژوبل شوي دي، دځایې خلګو دوینا په اساس اربکیانو په دغه برید کي د خلګو له کورنو څخه مختلف قیمتي توکي وړي دي.

د سپتمبر پر **۲۵** مه د کندز ولایت د امام صاحب ولسوالۍ په دوست محمد شاخ سیمه کي اربکیانو دوه تنه سپینږیري (یار محمد ګل او پهلوان) په شهادت رسولي دي.

د سپتمبر پر **۲۵** مه د اروزګان ولایت د چنارتو ولسوالۍ په پاتان سیمه کي یرغلګروځواکونو د عملیاتو پر مهال اته تنه ولسي هیوادوال شهیدان کړي دي.

د سپتمبر پر **۲۸** مه د هلمند ولایت د ګرشک ولسوالۍ د حید راباد په سیمه کي یرغلګرود شپې پر مهال د حاجي حسن خان د انګورو پر باغ چاپه وهلې، څلور تنه د باغ کارکونکي یې شهیدان کړي او دوه تنه یې بندیان کړي دي.

د سپتمبر پر **۲۹** مه یرغلګرود اروزګان ولایت د چوري ولسوالۍ په تیلبي سیمه کي د چاپې پر وخت دوه ولسي وګړي شهیدان کړي دي.

د سپتمبر پر **۲۹** مه یرغلګرود اروزګان ولایت د مرکز ترینکوټ اړوند د پای ناوې په سیمه کي د چاپې پر مهال دوه تنه ملکي وګړي (پلار او زوی) شهیدان کړي د ي.

د سپتمبر پر **۲۹** مه د غزني ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په مختلفو سیمو کي کورنیو عسکرو د عملیاتو پر مهال سل (۱۰۰) تنه ولسي وګړي بندیان کړي، دوی د خلکو کورونه تلاشي کړي، د نورو قیمتي شیانو تر څنګ یې اتیا (۸۰) عرادې موټرسایکلونه هم له ځان سره وړي دي.

د سپتمبر پر ۳۰ مه د هلمند ولایت د باغران ولسوالۍ په مشترک سیمه کي ځایي پولیسو د خپلي پوستې مخ ته پر غځېدلې سړک دوې ښځې شهیداني کړي او یوه ماشومه ژوبله کړې ده.

د سپتمبر پر ۳۰ مه د پکتیا ولایت د جاني خیل ولسوالۍ په میاکاله سیمه کي د اربکیانو د سپکو او درنو ډزو له امله یو ملکی سړی شهید شوی او لس تنه ولسي هیوادوال ژوبل شوي دي.

مأخذونه: [بي بي سي راډیو، ازادي =، افغان اسلامي اژانس، پژواک، روهي ویبپاڼه، لراوبر = ،نن ټکی اسیا = او بینوا =]

# داسلامي امارت فرمان او اعلامیه

په دا وروستیو کې د کمونستانو درژیم دظلمونو دلړۍ دیو لوی جرم نوی سند هم را ښکاره شو ، چې دپخواني کمونست رژیم د اګسا استخباراتي ارګان لخوا زموږ ۵۰۰۰ مظلوم او مسلمان هیوادوال دمسلمانۍ په جرم په ډلیز ډول په شهادت رسول شوي او اوس یې لست خپور شو ، اسلامی امارت دافغانستان دمسلمان ملت د شهیدانو د ریښتوني وارث په توګه یوځل بیا دغه لویه غمیزه په ترټولو کلکو الفاظو غندي ، دعاملینو دمحاکمې ژمنه یې کوي او د شهیدانو له ورثوو ، خپلوانو او کورنیو سره د زړه له تله خواخوږي ښیي ، اسلامی امارت دخپل حاکمیت په زمانه کې ددغو شهیدانو موضوع ته جدي پاملرنه کړې وه ، دکابل دفتحې په لومړۍ ورځ یې ددغې غمیزې ځینې مشهور عاملین دخپل عمل په سزا رسولي وو ، همدا راز هغه زمانه اسلامي امارت په یوبې ساري ګام کې دسترې محکمې اودهیواد جیدو عالمانو په پلټنې او تحقیقاتو سره ددغو شهیدانو په اړه شرعي حکم معلوم کړ او په یوه فرمان کې د عالیقدر امیرالمؤمنین لخوا په کمونستي دوره کې ټول نادرکه شوي افغانان شهیدان وبلل شول ، فاتحې یې واخیستل شوی او دهغو دکونډو او میراث په اړه دشریعت دحکم دتطبیق غوښتنه وشوه ، په یوبل ګام کې اسلامي امارت په هغه وخت کې د روسانو څخه دیوې الوتکې دنیولو په موضوع کې چې داسلامي امارت مخالفینو ته یې نظامي سامان آلات بار کړي وه او داسلامي امارت دهوایي ځواک لخوا په کندهار کې را کښته کیدو ته مجبوره شوه ،الوتکه او روسي عمله یې ونیول شول ،هم په روسانو دخبرو په جریان کې فشار وارد کړ، چې باید زموږ د ورکوشویو افغانانو حال معلوم کړي او که ددوئ په زندانونو کې ژوندي وي، باید را خوشې یې کړي، چې متأسفانه له ډیرو پلټنو او تحقیقاتو وروسته معلومه شوې وه ، چې دهغو کسانو نه څوک ژوندي نه دی پاتي ، بلکي دکمونستانو لخوا په شهادت رسول شوي دي ، موږ ددې اعلامیي سره جوخت دشهیدانو په اړه دهغې زمانې (۴۳ )نمبر فرمان هم خپروو ! چې لوستوالو ته یې په اړه پوره معلومات په لاس ورشي .

داافغانستان اسلامی امارت

۱۹/۱۱/۱۴۳۴هـ ق

۷/۱۳۹۲هـ ش-۲۵/۹/۲۰۱۳م